# اُصُولُ التَّفسِيرِ وَمَنَاهِجُهُ

## پښتو



تالیف: ډاکټر فهد الرومي.

پښتو ترجمه: عامر حسن البشاوري

# فهرست

## اول:د اصول التفسير د علم تعريف ددې د مرتبې بيان او فضل:

### الف:تعريف:

اصول په لغت کې د اصل جمع ده او اصل هغه شي ته وايي چې بل ورته محتاج يې او هغه بل ته نه يې محتاج.

په اصطلاح کې اصل هغه شی چې بل پرې مبني دی او هغه په بل باندې مبني ندی يا هغه چې حکم يې په خپله ثابت دی او بل شی پرې بنا دی.

### تفسير په لغت کې:

دې باره کې د علماو اختلاف دی:

۱ـ تفسير د تفعيل په وزن باندې دی د(فسر) نه ماخوذ دی په معنی د وضاحت کولو يا د مشکل لفظ د معنی وضاحت کول الله فرمايي:

او دوي چې هر کله تاته کوم مثال راوړی نو د هغې په بدلې مونږ تاته حق راوړو او هغه ايتونه چې د وضاحت په اعتبار سره د ټولو نه ښايسته دي.

۲ـ بعضې وايي دا د (سفر) څخه مقلوب دی،او مطلب يې وضاحت دی مثلا عرب وايي:(سفرت المراه سفوررا) کله چې ښځه مخ ښکاره کړي او د هغې نه پرده لرې کړي.

او (اسفر الصبح) يعني سحر رڼا شو.

او دا لفظ د باب تفعيل څخه راځي دې لپاره چې په کثرت باندې دلالت وکړي.

راغب رحمه الله فرمايي:فسر او سفر دواړه د معنى په اعتبار سره نژدې دي لكه څنګه يې چې الفاظ د يو بل په شان دي،البته دقيق فرق لري هغه دا چې فسر د معنوياتو لپاره استعماليږي او سفر د اجسادو لپاره چې په سترګو كوم شيان ليدلى شي.همدا وجه ده چې عرب وايي:ښځې خپل مخ ښكار كړ(سفرت المراه عن وجهها)

**تفسير په اصطلاح كې:**

هغه علم دى چې د الله د كتاب د فهم سبب ګرځي،كوم كتاب چې په محمد صلى الله عليه وسلم نازل شوى،ددې علم د ازدو كولو نه پس كولى شو چې د قران په معانو پوهه او د هغې د احكامو په استنباط كې مهارت ولرو.

**د تفسير او تاويل په مابين كې فرق:**

تاويل په لغت كې د (اول) څخه ماخوذ دى عربي كې وايي(اول الكلام وتاوله) يعني خبره يې منظمه كړه او اندازه يې وركړه،يا د هغې وضاحت يې وكړ.

د تاويل په اصطلاحي معنى كې د مفسرينو اختلاف دى:

بعضې وايي:تفسير او تاويل يو معنى لري.

احمد بن يحيى بن ثعلب فرمايي:تفسير او تاويل كې هيڅ فرق نشته.

ځكه نبي صلى الله عليه وسلم عبدالله بن عباس ته په دعا كې د تاويل لفظ استعمال كړى و چې الله د تاويل علم ورته وركړه،يعني تفسير.

سيوطي دا قول د ابو عبيد طرفته منسوب كړى.

او ابن عباس به فرمايل:زه د قران په تاويل پوهيږم.

مجاهد وايي:د شريعت تکړه علما د قران په تاويل پوهيږي.

ابن جرير الطبري چې کله د ايت تفسير بيانوي نو وايي:د الله ددې قول تاويل دادی يعني تفسير يا وايي:ددې ايت په تاويل کې د علماو اختلاف دی.

بعضې وايي:د تفسير او تاويل مابين کې فرق شته:

هغه فرقونه په لاندې ډول دي:

۱ـ د عموم خصوص فرق.

الف:تفسير د تاويل څخه عام دی راغب وايي:تفسير د تاويل نه ډير عام دی ځکه تفسير د الفاظو او مفرادتو وضاحت ته وايي او تاويل د جملو او پوره خبرې وضاحت ته لکه د خوب تعبير ته تاويل وايو بل دا چې تاويل د الله د کتابونو د وضاحت لپاره مستعمل دی او تفسير د الله د کتابونو وضاحت او عامو خبرو وضاحت ته ويلی شي.

ب ـ تاويل د تفسير نه ډير عام دی ځکه دا په کلام او غير کلام دواړو کې جاري کيږي مثلا وايو تاويل الکلام د خبرې وضاحت يا تاويل الامر د کار انجام او تفسير د کلام او د هغې د مدلول سره مختص دی.

۲ـ يو قول دادی چې د تفسير او تاويل مابين کې تباين دی او ددوی اختلاف دی:

۱ـ بعضې وايي:تفسير مطلب دا چې يو عالم ووايي په قطعي طور سره دا د الله مراد دی ددې ايت څخه او تاويل دا چې په ايت کې ډير احتمالات

شته نو عالم یو قول ته بغیر د جزم او قطع نه ترجیح ورکړي.دا د ماتریدي رحمه الله قول دی.

ب:بعضې وایي: د تاویل تعلق د روایت سره ده یعني د ایت تشریح په ایت یا حدیث سره کول او د تاویل تعلق د درایت سره یعني د قران تشریح په اجتهاد سره کول.

خازن وایي:د تفسیر او تاویل په مابین کې فرق دادی چې تفسیر په روایت(منقولاتو) باندې موقوف دی او تاویل په اجتهاد او فهم.

د تفسیر مثال دا ایت دی: **وَ اِنْ طَآىِٕفَتٰنِ مِنَ الْمُؤْمِنِیْنَ اقْتَتَلُوْا فَاَصْلِحُوْا بَیْنَهُمَا.**

کله چې د مسلمانانو دوه ډلې د یو بل سره نخته وکړي.

په حدیث کې راغلي ددې نه مراد اوس او خزرج دي.

الله فرمایي:

تاسو به راوبلل شي چې د سخت جنګ کوونکي قوم سره جهاد وکړئ.

ددې وضاحت په روایت سره شوی چې فارس او اهل یمن مراد دي.

الله فرمایي:

د بعضې خلکو خبره به په دنیا کې پتا باندې اثر کوي او تعجب کې به دې واقع کوي.

روایت کې راغلي ددې نه مراد اخنس بن شریق دی.

الله فرمایي: **وَ مِنَ النَّاسِ مَنْ یَّشْرِیْ نَفْسَهُ ابْتِغَآءَ مَرْضَاتِ اللّٰهِؕ-وَ اللّٰهُ رَءُوْفٌۢ بِالْعِبَادِ(۲۰۷)**

بعضې کسان خپل نفس د الله د رضا لپاره خرڅوي.

روایت کې راځي ددې نه مراد صهیب رضي الله عنه دی.

نو دیته تفسیر وایي چې د روایت باوجود د اجتهاد او رای طرفته عدول ندی جایز.

د تاویل مثال د الله دا قول: **اِنْفِرُوْا خِفَافًا وَّ ثِقَالًا وَّ جَاهِدُوْا بِاَمْوَالِكُمْ وَ اَنْفُسِكُمْ فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ-ذٰلِكُمْ خَیْرٌ لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ(۴۱)**

د جهاد لپاره سپک او درانه ټول ووځئ.

هر عالم د خپل اجتهاد او فهم مطابق دا ایت تشریح کړی نو بعضې وایي:مراد ځوانان او بوډاګان دي.دویم:مالدار او فقیران.دریم:مریضان او روغ.

او دا ټول اقوال مقبول دي،څو پورې چې د اصل او عقل خلاف نه دي.

ج:یو قول دادی چې تفسیر د مخلوق سره خاص دی او تاویل د الله صفت دی ځکه هغه فرمایي:او د قران په تاویل خو صرف الله پوهیږي.

یعني په قران کریم کې بعضې غیبي امور دي چې الله د هغې باره کې هیچا ته خبر ندی ورکړی لکه د قیامت د واقع کیدو وخت او د هغې علامات به کله ظاهریږي.

د: ابو طالب الثعلبي رحمه الله فرمایي:تفسیر د لفظ حقیقي یا مجازي معنی بیانولو ته وایي لکه د صراط نه مراد لاره او د صیب نه باران او تاویل د لفظ د باطني راز وضاحت ته وایي.ځکه دا د اول نه اخستل شوی مراد ترینه د یو کار انجام ته واپس کیدل دي.نو تاویل د مراد حقیقت

او انجام پورې تړاو لري.او تفسير خو د مراد ددليل وضاحت سره خاص دی ځکه لفظ د معنی څخه پرده پورته کوي، او کاشف دليل دی، او ددې مثال د الله قول:ستا رب په مورچل کې دی.

ددې تفسير دارنگه دی:

دا د رصد نه ماخوذ دی په معنی د مراقبه کولو يعني الله مراقبه کوي هر څه باندې خبير دی.

او تاويل دادی چې ووايو الله پدې ايت کې خلکو ته ويره ورکړې چې زما د احکامو پابندي وکړئ د غفلت څخه ډډه،او د پيشۍ د ورځې تياري ونيسئ.

**ج ـ د اصول التفسير تعريف په اعتبار د مرکب اضافي سره:**

ددې نه مراد هغه اصول او قواعد دي چې علم التفسير پرې قايم دی،د مفسر متعلق د شروطو ادابو ذکر کول،د تفسير متعلق امور لکه قواعد،طريقي،او د تفسير مناهج وغيره ذکر کول.

يا اصول التفسير هغه علم دی چې ددې په ذريعه مونږ د قران صحيح فهم ته رسيدلی شو،پدې سره د صحيح او غلط منهج په مابين کې فرق کولی شو.

دا د هغه علومو څخه دی چې د قران کريم د خدمت لپاره وضع شوي،لکه د تجويد او قرات او رسم علوم.

د علوم القران او اصول التفسير مابين کې مضبوط تعلق دی،دا د علوم القران مهمه حصه ده،البته کله د مجاز مرسل په طور علوم القران ته

اصول التفسير وايي،د جز استعمال او مقصد کل اغستل د باب څخه ځکه اصول التفسير د علوم القران اهم جز دی.

**د اصول التفسير هدف او غايت:**

د تجويد د علم مقصد د قران الفاظ صحيح کول او دا چې صحيح طريقې سره تلفظ وکړی شي،نو د اصول التفسير مقصد د قران کريم صحيح فهم ته رسيدل دي.

د اصول التفسير هدف داسې قواعد،مناهج او طريقې وضع کول دي چې د قران د فهم لپاره معين ثابتيږي او د مفسر شروط او اداب ذکر کوي ځکه هر سړی د قران د تفسير اهل ندی.

**د اصول التفسير فوايد:**

ددې علم متعدد فوايد شته چې اهم يې په لاندې ډول دي:

۱ـ ځان د علم په اسلحې سره مسلح کول،علمي ثقافت پيدا کول،د اسلام د دشمنانو په ضد د قران د دفاع طريقې پيژندل،کوم چې د قران په ايتونو کې په الحاد کولو بوخت دي.

۲ـ د قران د تفسير صحيح طريقې پيژندل،او دا چې کوم منهج د تفسير په باب کې صحيح دی او کوم يو غلط،او څوک د تفسير اهل دی،او د کومو خلکو تفسير مردود دی.

۳ـ هغه قواعد پيژندل چې د الله د کتاب په فهم کې طالب علم سره مرسته کوي،دې لپاره چې مسلمان خپله عقيده په صحيح قاعده باندې مبني کړي.

۴ـ دهغه کوششونو او خدماتو څخه خبريدل چې علماوو د قران د لفظ او معنې د حفاظت لپاره د تاريخ په مختلفو حصو کې تر سره کړي دي،او پدې باب کې د هغوی اقتدا کول.

## د اصول التفسير موضوع:

د يو علم د موضوع څخه مراد هغه شی دی چې ددغه علم د عارضي احوالو باره کې بحث کوي،نو د اصول التفسير موضوع داده چې دا د تفسير لپاره قواعد،اصول،او شروط وضع کوي،او هغه مناهج چې مفسرينو د قران د تفسير په وخت انتخاب کړي،او د علم التفسير موضوع د قران کريم د الفاظو معاني بيانول او د هغې څخه رازونو او احکام رايستل دي.

## ددې علم فضل او مرتبه:

دا علم ستره مرتبه لري ځکه اصول التفسير د علم تفسير لپاره قواعد وضع کړي او د علم التفسير موضوع قران دی چې خير الکلام او د الله کتاب دی،نو هيڅ د تعجب خبره نده چې ووايو اصول التفسير په ټولو علومو کې اشرف او افضل علم ده.

## د علم تفسير پيدايښت او مراحل:

د الله طريقه داده چې هر امت ته يې يو كتاب او رسول راليږلی او دا كتاب د هغوی د ژبې مطابق وي،الله فرمايي: **بِالْبَيِّنَاتِ وَالزُّبُرِ وَأَنزَلْنَا إِلَيْكَ الذِّكْرَ لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ مَا نُزِّلَ إِلَيْهِمْ وَلَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُونَ (44).**

او مونږ هر يو رسول خپل قوم ته د هغوی په ژبه ليږلی چې وضاحت وكړي.

نو محمد صلى الله عليه وسلم په جزيره العرب كې مبعوث شوی او په عربۍ ژبه كې پرې الله قران نازل كړی الله فرمايي:او مونږ دا قران په عربۍ ژبه نازل كړی دې لپاره چې تاسو د عقل نه كار واخلئ.

او فرمايي:بيشكه جبريل دا قران ستا په زړه نازل كړی،دې لپاره چې ته خلكو ته ويره وركړې او دا په عربۍ ژبه كې دی.

د هغه قوم(قريش) د عربۍ ژبې څخه واقف وو،لهذا د قران په ايتونو باندې پوهيدل،البته قران د لفظ او لغوي او بلاغي اسلوب په اعتبار سره د عام كلام سره فرق لري،لهذا عرب د قران په فهم كې متفاوت درجات درلودل،البته ټولو ته معلومه وه چې قران يوه معجزه ده،خو د قران په بعضې الفاظو نه پوهيدل نو كوم لفظ چې مشكل و د هغې باره كې به صحابه و د رسول الله نه پوښتنه كوله،هغه به ورته وضاحت وكړ،نو ددې ځاې نه علم تفسير پيدا شو او په مختلفو مراحلو باندې تير شو:

## اولنۍ مرحله: د رسول الله په زندګۍ کې د تفسیر وجود:

الله سبحانه وتعالی د قران د حفاظت ذمه دارې اخستې هغه فرمايي:او مونږ دا قران نازل کړی،نو خامخا به يې تر قيامته حفاظت کوو.
همدارنګه الله وعده کړې وه چې دا قران به د رسول الله په سينه کې راجمع کوي،هغه فرمايي:ژبه پرې مه خوځوه چې جلدي وکړې،ځکه زمونږ کار دی چې دا ستا په سينه کې جمع کړو.
بيا يې خپل پيغمبر ته حکم کړی و چې خلکو ته د قران تشريح وکړي،لهذا الله فرمايي:او بيشکه مونږ تاته دا کتاب نازل کړی چې خلکو ته د بعضو ايتونو تشريح وکړې،دې لپاره چې هغوی سوچ پرې وکړي.
همدا وجه وه چې صحابه و به د قران د مشکل ايتونو د تشريح لپاره رسول الله ته رجوع کوله نو شافي او کافي جواب به يې مونده کوو.
د علماو اختلاف دی چې رسول الله څومره مقدار د قران ايتونو تشريح کړي،نو پدې اړه دوه قوله مشهور دي:
اول:ابن تيميه رحمه الله وايي:رسول الله چې څنګه د قران ټول الفاظ صحابه و ته بيان کړي دغه شان د هغې ټولو وضاحت يې هم کړی ځکه د الله دا قول:چې ته خلکو ته د ايتونو وضاحت وکړې،دا معنی او لفظ دواړو ته شامل دی.
ددې قول دلايل:
۱ـ د سورت نحل دغه پورتنی ايت:

۲ـ د ابو عبدالرحمن السلمي حديث: چې صحابه و به لس ايته ازده کړل د هغې څخه به يې تجاوز نه کوو تر څو چې به يې په هغې کې موجود احکام او اعمال ازده کړل نو وايي: مونږ قران او عمل دواړه حاصل کړل.

۳ـ ابن عمر صرف د سورت بقره په يادولو اته کاله تير کړي،نو ددې مطلب دا چې هغوی صرف حفظ نه کوو بلکې د معانو پوهه يې هم حاصلوله.

۴ـ د کلام مقصد دا وي چې سړی پرې پوهه شي ځکه د طب يا حساب کتاب څوک هم د فهم نه بغير نه وايي چې صرف الفاظ يې ووايي او د معنی څخه خبر نه وي،نو قران خو د الله کتاب دی چې پدې سره زمونږ نجات او دنيوي او اخروي سعادت دی،نو څنګه کيدای شي چې د مطلب او فهم نه بغير يې ولولو.

دويم قول: رسول الله صحابه و ته د ډيرو کمو ايتونو تشريح کړې،او ددوی دلايل:

۱ـ عايشه رضي الله عنها فرمايي: رسول الله يو څو ايتونه تشريح کړي،چې جبريل ورته د هغې تفسير کړی و.

۲ـ الله خپل پيغمبر ته پدغه ايت کې د ټولو ايتونو د شرح کولو حکم ندی کړی،دې لپاره چې خلک د الله په کتاب کې پخپله تدبر وکړي،او د کومو ايتونو تفسير چې په حديث کې ندی وارد هغه په علاماتو او دلايلو کې د سوچ په نتيجه کې مخې ته راتلی شي.

۳ـ که رسول الله چیرته د قران د ټولو ایتونو تفسیر پخپله کړی و نو بیا ابن عباس ته د قران په تفسیر کې د مهارت د دعا څه معنی؟ځکه ټول صحابه خو بیا په فهم د قران کې برابر شول نو د ابن عباس رضي الله عنهما خصوصیت پاتې نشو.

راجح قول:

زما په نزد راجح قول دادی چې رسول الله د قران ټول ایتونه ندي تفسیر کړي،ځکه:

۱ـ د بعضې ایتونو فهم په عربي باندې موقوف دی،نو دارنگه ایتونه بیان او وضاحت ته هیڅ ضرورت نلري.

۲ـ بعضې ایتونه انتهایي واضح احکامو باندې مشتمل دي نو د ایت د اوریدو سره سمدواره ذهن ورته رسیږي،لهذا وضاحت ته اړتیا نشته لکه د الله دا قول: **حُرِّمَتْ عَلَيْكُمْ أُمَّهَاتُكُمْ.**

پتاسو باندې د میندو سره نکاح حرامه ده.

ددې ایت په اوریدو سره سم د سامع ذهن ته د نکاح حرمت رامخکې کیږي.

۳ـ بعضې مسایل داسې دي چې علم یې الله سره دی،هیڅوک یې پرې ندې خبر کړي،لکه د قیامت د قایمدو وخت د روح حقیقت وغیره تر دې چې خپل پیغمبر ته یې هیڅ شی ددې په اړه ندی وحي کړی،نو هغه به یې څرنگه وضاحت او تفسیر وکړي؟.

۴ـ بعضې مسایل داسې دي چې په پیژندلو کې یې هیڅ فایده نشته لکه دا چې د اصحاب کهف والاو د سپي رنګ څنګه و،د موسی علیه السلام امسا د کوم بوټي نه جوړه وه،ابراهیم علیه السلام ته الله کوم قسم مرغان راژوندي کړي و،وغیره نو ددې تفسیر رسول الله ندی کړی.
نو مونږ په یقین سره ویلی شو چې د الله رسول د قران د ټولو ایتونو تفسیر ندی کړی،البته دا قول هم صحیح ندی چې رسول الله د ډیرو کمو ایتونو تشریح کړې،او ددې لپاره د عایشه رضي الله عنها د حدیث څخه استدلال ځکه دا حدیث کمزوری دی د محمد بن جعفر الزبیري د وجې.
طبري وایي:په علماو کې یې څوک نه پیژني.او ابن کثیر وایي:دا حدیث منکر او ناشنا دی.
البته که صحت یې تسلیم کړو نو ددې نه مراد غیبي امور دي،چې صرف الله سره یې علم خاص دی.
ددې قول د رد لپاره دا خبره کافي ده چې د حدیث په کتابونو کې ډیر روایات د رسول الله څخه مرفوعا نقل دي چې د قران د تفسیر پورې تړاو لري.

**په تفسیر کې د رسول الله منهج:**

رسول الله د ایت په تشریح کې تفصیل ندی کړی چې خبره اوږده کړي،یا د موضوع څخه خروج وکړي،او هغه امور بیان کړي چې هیڅ ثمره او

فايده نلري،نو هغه به اکثر د قران د مجمل ايتونو وضاحت کولو يا د عام تخصيص او مطلق تقييد.

**دويمه مرحله:د صحابه و په زمانه کې د قران کريم تفسير:**

مونږ دا خبره ذکر کړه چې صحابه خالص عرب وو،نو د قران په معنی او مقصد پوهيدل ځکه هغوی د عربي ژبې علم درلوده او د هغوی فهم د عجميت او د فاسدو عقايدو او بدعاتو څخه پاک و.

کله چې به هغوی ته د ايت فهم مشکل شو،د رسول الله طرفته به يې رجوع وکړه،نو هغه به ورته تفسير او وضاحت وکړ،که دا ممکن نه و نو خپل اجتهاد به يې وکړ،او دې کې شک نشته چې ټول صحابه په فهم د قران کې برابر نه وو،بلکې يو بل ته به يې رجوع کوله،ځکه ددوی په مابين کې تفاوت او اختلاف د فهم قوت او ادراک او د ايت سبب نزول او حالاتو ته راجع و،بلکې هغوی د الفاظو د معنې په پيژندلو کې هم متفاوت وو،د قران داسې الفاظ شته چې بعضو ته يې مطلب معلوم و،او نورو باندې پټ پاتې شوی و،دا څه د تعجب خبره نده،ځکه په لغت باندې مجموعي افراد احاطه کوي،ضروري نده چې هر فرد په لغت کې مهارت ولري،لکه عمر رضي الله عنه ته د(اب) معنی نه وه معلومه.

دارنګه د (تخوف) معنی د الله پدې قول کې تر دې چې د هذيل قبيلې يو کس ورته وويل:مونږ تخوف تنقص ته وايو.

د ابن عباس څخه روايت دی چې زه د فاطر په معنی نه پوهيدلم تردې چې يو دوه کسان مې وليدل د يو بل سره په بحث اخته وو،د کوهې

متعلق،نو يو وويل(انا فطرتها) يعني په ابتدايي طور سره ما ددې کوهي بنياد ايخی دی.

دا عدي بن حاتم و چې پدې ايت نه وو پوهه شوی:

نو خپل سر سره نژدې يې يو سپين تار او بل تور کيخودی و،تر دې چې رسول الله ورته وضاحت وکړ.

د قران په فهم کې د صحابه و تفاوت(اختلاف) لاندې اسبابو ته راجع دی:

۱ـ د فهم په ادواتو کې مختلف وو،لکه د عربۍ علم نو څوک د عربۍ ژبې په مفرداتو ډير پوهه و،او څوک کم.

۲ـ ځکه چې بعضې صحابه و د رسول الله سره ناسته پاسته ډيره کړې وه د نورو په نسبت.

۳ـ بعضې د ايتونو د اسباب نزول څخه خبر و،او بعضې نور نه.

۴ـ په شرعي علومو کې په مهارت کې متفاوت وو.

۵ـ صحابه و د عامونو انسانانو پشان په عقلي ادارک کې تفاوت لرلو.

همدا وجه ده چې مسروق وايي:زه د پيغمبر د ملگرو سره کيناستلی يم،هغوی د حوض پشان دي،ځکه يو حوض يو کس لپاره کافي کيږي،او بل دوه کسانو لپاره،او بل لسو لپاره،بعضې حوض داسې شته چې سل کسان مړوي،داسې هم شته چې د ځمکې ټول خلک ماړه کړي.

البته د صحابه و تفسير ته امتياز حاصل دی،ځکه په هغوی کې لاندې صفات موجود وو:

۱ـ اسراییلي روایات یې په کثرت سره نه روایت کول،ځکه رسول الله پدې حریص و چې د هغه صحابه د اسلام د صفا چینې څخه استفاده وکړي چې هیڅ خړوالی ندی ورسیدلی،او پدې باندې د دلالت لپاره د رسول الله غوسه کافي ده چې کله یې د عمر رضي الله عنه په لاس کې د توراتو صیحفه ولیدله نو په غوسه شو.

۲ـ هغوی د ټول قران تفسیر ندی کړی،ځکه بعضې ایتونو واضح وو،وضحات او تفسیر ته یې ضروت نه لره،ځکه هغوی په عربي کې مهارت،او د معاشرې په احوالو باندې خبر وو.

۳ـ هغوی د تفسیر کې تکلف ندی کړی،د بعضې ایتونو په تشریح کې یې په عام معنی باندې اکتفا کړې،د بې فایدې تفصیل څخه یې ډډه کوله،مثلا ددې ایت په تفسیر کې یې پدومره خبره کفایت کړی وو،چې دې کې الله خپل نعمتونه ذکر کړي،او د (اب) د معنې د پیژندلو تکلف یې هم نه کولو.

۴ـ هغوی د تفسیر باره کې د کتاب لیکلو اهتمام ندی کړی ،د تفسیر ټول اقوال د هغو څخه تابعینو نقل کړي،البته څه صحابه داسې وو چې د تفسیر اقوال یې په کتاب کې جمع کړي وو،لکه عبدالله بن عمرو بن العاص صحیفه لیکلې وه چې د صادقه په نوم یادیږي،او فرمایل یې:دا صادقه ما د رسول الله څخه اوریدلې ده چې زما او د هغې مابین کې هیڅ واسطه نه وه.

او دا صحیفه امام احمد په مسند کې نقل کړې،البته د صحابه و په زمانه کې د تفسیر تدوین کم و.

**په تفسیر کې د صحابه و منهج:**

ددوی منهج په درې قواعدو بنا دی:

**۱ـ د قران د یو ایت تشریح په بل سره کول(د قران تفسیر په قران سره):**

ځکه د قران یو ایت کله مجمل(وضاحت یې نه وې کړی شوی) په یو مقام کې بیا الله په بل مقام کې د هغې وضاحت کړی وي.یو مقام کې عام بل کې تخصیص وارد دی،په یو ځای کې مطلق،او بل کې یې تقیید راغلی وي. مثلا په قران کې واردې قصې په یو سورت کې اجمالا ذکر شوي،او بل کې یې تفصیل راغلی،لکه د ادم علیه السلام او ابلیس قصه،د موسی علیه السلام واقعه د فرعون سره.

او دا قسم تفسیر د ابن تیمیه رحمه الله بقول د تفسیر دښایسته طریقو څخه دی.

**۲ـ د قران تشریح د حدیث په ذریعه:**

کله چې به هغوی ته د ایت تفسیر او وضاحت په قران کې میلاو نه شو،نو د رسول الله صلی الله علیه وسلم طرفته یې رجوع کوله،نو هغه به وضاحت وکړ.

الله فرمایي:او مونږ تاته قران ددې لپاره نازل کړی چې د بعضې ایتونو وضاحت هغوی ته وکړې.

د حديث په کتابونو کې د تفسير د اقوالو لپاره مستقل بابونه قايم شوي.
ددې مثاله ډير زيات دي،چې صحابه و به د قران د تشريح لپاره رسول الله ته رجوع کوله مثلا:ابن مسعود رضي الله عنه فرمايي:کله چې دا ايت نازل شو:

**الَّذِينَ آمَنُوا وَلَمْ يَلْبِسُوا إِيمَانَهُم بِظُلْمٍ أُولَٰئِكَ لَهُمُ الْأَمْنُ وَهُم مُّهْتَدُونَ (82).**

هغه کسان چې ايمان يې راوړی او خپل ايمان يې د ظلم په وجه ندی تباه کړی د هغوی لپاره امن دی.

نو صحابه حيران شو،او دا خبره پرې سخته ولگيده،هغوی وويل:د الله پيغمبره،مونږ کې خو ټولو په ځان ظلم کړی(يعني گناه) هغه وفرمايل:ددې مقصد گناه کول ندي،بلکې شرک دی.ايا تاسو د قران هغه بل ايت ندی اوريدلی چې:

لقمان خپل ځوې ته وويل:د الله سره شرک مه کوه ځکه شرک غټ ظلم دی.

علي رضي الله عنه فرمايي:ما د رسول الله څخه پوښتنه وکړه چې په قران کې د حج اکبر لفظ راغلی دی،ددې څخه معنی،هغه وفرمايل:د غټ اختر ورځ.

عايشه رضي الله عنها فرمايي:رسول الله وفرمايل:چا سره چې بحث وشو نو خامخا عذاب به ورکړی شي،ما وويل:ايا الله ندي فرمايلي:چې هغه سره به اسان حساب وشي،هغه وفرمايل:د حساب نه مراد عرض(پيشي) ده.

او رسول الله به کله د قران تفسير بغير د چا د پوښتنې نه کولو لکه عقبه بن عامر وايي:د الله رسول په منبر باندې دا ايت ولوست:

**وَأَعِدُّوا لَهُم مَّا اسْتَطَعْتُم مِّن قُوَّةٍ.**

او د کافرانو لپاره هر قسم قوت د خپل وس مطابق تيار کړئ.

نو ويې فرمايل:د قوت اولنی او مهم قسم ويشتل ازده کول دي.

انس رضي الله عنه فرمايي:د الله رسول فرمايلي دي:کوثر هغه نهر دی چې په جنت کې الله ماته راکړی.

**۳ـ اجتهاد او استنباط:**

که هغوی به د ايت تفسير په قران يا سنت کې مونده نکړ،نو خپله اجتهاد ته به مجبوره شو،ځکه هغوی خالص عرب دي،د رسول الله په مجالسو کې حاضر شوي،قران د هغوی په ژبه نازل شوی،البته هغوی کې د اجتهاد شروط متوفر وو:

۱ـ د عربي په احوالو،رازونو پوهه،د قران د ايتونو په فهم کې مدد گار ثابتيږي.

۲ـ د عربو په عاداتو اخلاقو خبر وو،پدې سره د هغه ايتونو فهم اسانيده چې د عادت يا سلوک د اصلاح متعلق وو لکه د الله دا قول:بيشکه د مياشتو وروسته کول په کفر کې زيادت دی،او دا:دا نيکي نده چې تاسو د شا له طرفه کورونو ته راشئ. ځکه څوک چې د عربو عادات پيژني،نو دا رنگه پدې قسم ايتونو سمدست پوهيدلی شي.

۳ـ هغوی(صحابه) د يهودو او نصاراو د احوالو څخه خبر وو،نو د دوی متعلق ايتونو باندې په اسانۍ سره پوهه شول.
۴ـ صحابه و ته د ايتونو د نزول د اسبابو معرفت حاصل و،ځکه هغوی د قران د نزول په زمانه کې شاهدين وو،هغه واقعات يې په سترګو ليدلي وو،نو ددې وجې په ډيرو ايتونو پوهه وو،همدا وجه ده چې ابن تيميه رحمه الله فرمايي:د سبب نزول پيژندل د ايت په فهم کې مدد کوي،ځکه د سبب پيژندل د مسبب د پيژندلو ذريعه ده.
۵ـ قوي فهم او ادارک کوم چې الله صحابه و ته ورکړي وو،دا خبره د هغوی د سيرت څخه معلومه ده چې د قوي فهم په وجه په ډيرو ايتونه پوهه شوي وو چې په قران او سنت کې يې تشريح نه وه.
په صحابه و کې بعضې په تفسير سره مشهور دي لکه ابوبکر، عمر، عثمان، علي، عبدالله بن مسعود، ابن عباس، عبدالله بن الزبير، ابي بن کعب،زيد بن ثابت، ابو موسی الاشعري، عايشه رضي الله عنهم، نو صحابه هم شته چې تفسيري روايات ترې په قلت سره نقل دي،لکه انس،ابو هريره،ابن عمر،جابر بن عبدالله،عبدالله بن عمرو بن العاص.
البته په صحابه و کې مشهور او مکثرين مفسرين صرف څلور دي:علي، عبدالله بن مسعود، عبدالله بن عباس، ابي بن کعب رضي الله عنهم.
د علي رضي الله عنه په تفسير کې د مهارت سبب د هغه واسع علم ته راجع دی، او دا چې هغه ډيره زمانه علم ته ځان فارغ کړی و،د خلافت په امورو مشغول نه و،ځکه ابو بکر،عمر،او عثمان،خلافت پوره کړ،او بيا دده

دور راغلی،او وروسته زمانې ته پاتې شوی و،چې خلکو د قران مفسر ته اړتیا لرله.ځکه اسلام خپور شو،او ډیر خلک د الله په دین کې شامل شول.

او باقي درې صحابه په تفسیر باندې مشهور شول،ځکه هغوی ددې مدارس قایم کړل لکه:

**۱ـ په کوفه کې د ابن مسعود مدرسه:**

هغه شپږم مسلمان و،په مکه کې اولنی صحابي چې په قران یې اواز پورته کړی و، د رسول الله خادم، هغه ته د اودس د اوبو،مسواک،او څپړو،حاضروونکی،کله چې به غسل ته لاړ،نو هغه ته پرده کوونکی،کله چې به اوده و،نو راپاڅوو به یې،یو ورځ یې رسول الله ته قران اورلو تر دې چې د هغه صلی الله علیه وسلم د سترګو نه اوښکې روانې شوې،او رسول الله فرمایي:که څوک غواړي چې تازه قران ولولي لکه څنګه چې نازل شوی،نو د ابن مسعود په قرات دې ولولي.

عمر رضي الله عنه په خپل حکومت کې کوفې ته ولیږه چې خلکو ته تعلیم ورکړي،عمر وویل:کوفې ته په لیږلو ما ابن مسعود ته ترجیح ورکړه،ځکه دا سړی د علم نه ډک دی،کله چې علي رضي الله عنه کوفې ته راغلی نو خلکو وویل:مونږ د ابن مسعود پشان،ښایسته اخلاقو والا،مشفق معلم،او زاهد انسان ندی لیدلی،هغه وویل:په الله قسم،ایا دا خبره تاسو ریښتیا د زړه څخه کوئ،هغوی وویل:هو،علي رضي الله عنه وفرمایل:اې الله ګواه شه چې زه د ابن مسعود باره کې همدا ګواهي ورکوم،چې دوی ورکړه،ابن مسعود فرمایي:په الله قسم د قران په هر یو ایت خبر یم،چې د چا باره کې نازل

دی،څه وخت نازل دی،که ماته پته وی چې زما نه بل څوک په قران ښه پوهیږي،نو ورغلی به وی.

د هغه مشهور شاگردان:مسروق،علقمه،اسود،قتاده،وغیره دي.

**۲ـ په مکه کې د ابن عباس رضي الله عنهما مدرسه:**

د پیغمبر د تره ځوی،د هجرت څخه درې کاله مخکې پیدا شوی و،د مور نوم یې لبابه الکبری دی،دده ترور میمونه د رسول الله بې بې ده،ابن مسعود فرمایي:د قران ډیر ښه ترجمان ابن عباس دی،ابن عمر فرمایي:ابن عباس پدې امت کې د الله په قران د ټولو نه ښه پوهه دی،رسول الله د هغه لپاره دعا کړې وه چې الله په قران کې مهارت ورته نصیب کړه،طاوس ته وویل شو:دې ماشوم پسې روان یې،او غټ صحابه دې پریخي دي؟هغه وویل:ما اویا صحابه لیدلي چې کله به یې اختلاف و،نو ابن عباس ته به یې رجوع وکړه،په ٦٨ هجري کې وفات شوی.

تنبیه:خلکو د تفسیر په اړه ډیر روایات د ځانه جوړ کړي،او د ابن عباس طرفته یې نسبت کړی،ځکه پدې باب کې هغه ته مرتبه حاصله وه.

دده مشهور شاگردان:مجاهد بن جبر،سعید بن جبیر،طاوس بن کیسان،عطا،او عکرمه دي.

**۳ـ په مدینه کې د ابي بن کعب مدرسه:**

هغه د خزرج قبیلې څخه و،په عقبه او بدر کې شریک شوی،د رسول الله اولنی کاتب کله چې مدینې ته راغلی،د قاریانو سردار،د وحي کاتب،رسول الله فرمایي:په ټولو کې ستر قاري همدا دی.

انس فرمايي:رسول الله ابي بن كعب ته وويل:الله ماته حكم كړی چې تاته قران در واوروم؟هغه وويل:ايا الله زما نوم اخستی دی؟هغه وفرمايل:هو،نو هغه په ژړا شو،د عمر په خلافت کې وفات شوی.

ابو العاليه د تفسير ډير اقوال دده څخه نقل کړي،چې ابن جرير،ابن ابي حاتم،امام حاکم،او احمد په خپلو کتابونو کې دغه اقوال نقل کړي.

دده مشهور شاگردان:ابو العاليه،زيد بن اسلم،محمد بن کعب،دده ځوې طفيل بن ابي بن کعب.

## د صحابي د تفسير حکم:

**د صحابي تفسير په دوه قسمه دی:**

۱ـ هغه تفسير چې د اجتهاد مجال پکښې نشته،لکه غيبي کارونه،اسباب نزول،نو دا د مرفوع حديث پشان دي،چې قبلول يې ضروري دي.

۲ـ د صحابه هغه تفسير چې اجتهاد يې کړی وي،نو دا دده خپله رايه ده تر څو چې د پيغمبر طرفته يې نسبت نه وي کړی،او بعضې علما وايي:د صحابي موقوف روايت د تفسير په باب کې قبلول واجب دي،ځکه دوی ته په تفسير کې امتيازات حاصل وو.

ابن تميه فرمايي:که د قران تفسير په قران يا حديث کې مونده نکړې،د صحابه و قول ته لاړ شه،ځکه دوی په تفسير د ټولو نه ښه پوهه لري،ځکه دوی د قران د نزول په زمانه کې حاضر وو،خصوصا پدوی کې علما صحابه.

**دریمه مرحله:د تابعینو په زمانه کې د قران تفسیر:**

د صحابه و او تابعینو په منهج کې خاص فرق نشته،ځکه دوی تفسیر د صحابه و څخه ازده کړی.

دوی په تفسیر کې احتیاط کولو،لکه د صحابه و په څیر،سعید بن مسیب څخه چې پوښتنه کیدله ددې ایت څه معنی؟داسې به غلی شو،لکه هیڅ چې یې ندي اوریدلي.

دا ددوی احتیاط و،البته که څوک د لغت او اصول تفسیر مطابق د قران څخه یو حکم اخذ کړي،نو څه باک نشته.

**په تفسیر کې د تابعینو منهج:**

د تفسیر په بنیادي مسایلو کې صحابه او تابعین مشترک دي،البته هغوی د صحابه کرامو څخه تفسیر ازده کړی و،او ددوی په زمانه کې مختلف ممالک فتح شوي وو،نو د تفسیر بعضې نور نوي قواعد مخې ته راغلل،نو د تابعینو منهج په لاندې امورو مشتمل دی:

۱ـ د قران تفسیر په قران سره کول.

۲ـ د قران تفسیر په حدیث سره کول.

۳ـ د قران تفسیر د صحابه و په اقوالو سره کول،ځکه تابعینو به پدې باب کې تفسیر ته رجوع کوله،د هغوی اقوالو ته به یې په خپلو اقوالو ترجیح ورکوله،دوی صحابه و ته تفسیر تیر کړی و،لکه مجاهد بن جبر وایي:ما درې مرتبه ابن عباس ته مصحف تیر کړی،د فاتحې نه والناس پورې،د هر ایت نه پس به مې ترې پوښتنه کوله.

۴ـ فهم او اجتهاد کله چې به تابعینو ته د قران تفسیر په قران،سنت،او د صحابه و په اقوالو کې مونده نه کړ،خپله اجتهاد به یې وکړ،دوی به په تفسیر کې په لغت باندې استعمال کوو،د صحابه و خصوصي شاگردان و،که دوی د اجتهاد اهل نشي،نو څوک یې اهل دی.؟

**۵ـ د اهل کتابو(یهودو او نصاراو) اقوال:**

ځکه چې قران د پیغمبرانو قصې په اختصار سره ذکر کړي،ددې تفاصیل پکښې نشته،او زړونه همیشه تفصیل غواړي،کله چې مختلف ممالک د مسلمانانو لاس ورغلل،او اهل کتاب د الله په دین کې داخل شول،چې دوی ته د قران د قصو تفاصیل معلوم و،دا تفاصیل یې د تورات او انجیل څخه ازده کړي وو،نو اهل کتابو دا تفاصیل خلکو ته بیانول شروع کړل،او خلک همدوی ته متوجه شول،همدا وجه وه چې په تفسیر کې د یهودو اقوال داخل شول،چې دیته اسراییلي روایات وایي.

د عبدالله بن سلام،کعب الاحبار،وهب بن منبه،عبدالملک بن جریج څخه په کثرت سره اسرایلي روایات نقل دي.

**د تابعینو د تفسیر خصوصیات:**

۱ـ ددوی په زمانه کې په تفسیر کې اسراییلي روایات داخلیدل.

۲ـ چونگه نور ملکونه فتح شول،د عجمو کثیر تعداد د الله په دین کې داخل شول،نو ډیر داسې ایتونه چې صحابه و نه و تشریح کړي،د هغې تفسیر ته اړتیا پیښه شوه،لهذا تابعینو په تفسیر کې اضافه وکړه.

۳ـ پدې زمانه کې تفسير د روايت او نقل په شکل کې يو بل ته نقل کيده،او دې يو خاص شکل اختيار کړی و،ځکه د هر ملک خلکو به په خپل مدرسه اکتفا کوله،لکه د مکې د خلکو مرجع ابن عباس و،د مديني د خلکو مرجع ابي بن کعب او د عراق مرجع ابن مسعود و.

۴ـ د تفسيري اقوالو کثرت او اختلاف ځکه تابعينو په خپل اجتهاد سره د صحابه و د اقوالو نه علاوه خپل اقوال اضافه کړل،نو په يو ايت کې ډير اقوال مخې ته راغلل.

۵ـ پدې زمانه کې د مذهبي اختلاف بنياد کيخودلی شو،داسې اقوال د تفسير په کتابونو کې داخل شول،چې د يو مذهب تاييد يې کولو.

٦ـ پدې زمانه کې د تفسير باره کې هر قول به په سند سره ذکر کيده،دې لپاره چې صحيح او ضعيف کې فرق راشي.

پدې زمانه کې مشهور مفسرين:

مجاهد بن جبر،سعيد بن جبير،عطا،عکرمه،الحسن البصري،زيد بن اسلم،قتاده بن دعامه،محمد بن کعب،ابو العاليه،عامر الشعبي وغيرهم.

**د تابعي د تفسير حکم:**

کله چې د ايت تفسير د رسول الله يا صحابه و څخه نقل ندی نو آيا د تابعي قول ته رجوع کولی شو،دې باره کې د علماو اختلاف دی:

ابن عقيل،امام احمد،او شعبه وايي:د تابعي قول د تفسير په باب کې قبلول ضروري ندي ځکه:

۱ـ دوی د رسول الله څخه سماع نده کړې،نو ددوی تفسیر داسې ګڼړل چې شاید د رسول الله څخه یې اوریدلی وي ممکن ندي.
۲ـ دوی د قران د نزول احوال او واقعات په سترګو ندي لیدلي،لهذا د ایت په فهم کې ترې غلطي واقع کیدلی شي.
۳ـ ټول تابعین خو عدول ندي،لکه د صحابه و پشان،لکه ابو حنیفه فرمایي:د رسول الله قول په سر سترګو قبول دی،که د صحابي قول راشي،عمل پرې کوم،البته که د تابعي قول راشي،نو هغوی زمونږ پشان سړي دي.
اکثر مفسرین وایي:که د قران تفسیر په حدیث یا قول صحابي کې میلاو نشو،د تابعي قول به اخلو،ځکه دوی د صحابه و څخه زده کړه کړې،د هغوی په مجالسو کې حاضر شوي،د هغوی څخه یې استفاده کړې،چې بل چا نده کړې،لکه قتاده فرمایي:د قران د هر ایت په اړه ما د صحابه و څخه پوښتنه کړې،او شعبي وایي:هیڅ یو ایت باندې نه یم تیر شوی،مګر د صحابه و څخه مې پوښتنه کړې.
راجح قول:
ابن تیمیه فرمایي:که تابعین د ایت په تفسیر باندې اجماع وکړي،نو ددې په قبلولو کې هیڅ شک نشته،البته که اختلاف یې کړی و،نو د یو قول په بل باندې حجت ندی،بلکې ددوی د اقوالو څخه به یو ته ترجیح د قران حدیث،لغت،یا صحابي د قول په رڼا کې ورکولی شي.

زه وایم:پدې کې خو اختلاف نشته،اختلاف پدې کې دی چې د تفسیر په باب کې د تابعي قول راشي،او مخالف يې نه وي معلوم،نو داسي قول بايد قبول کړی شي،او د نور امت په اقوالو باندې مقدم وګڼلی شي،ځکه د تابعينو فضل ته څوک رسيدی شي؟

**څلورمه مرحله:د تدوين(په کتاب کې د تفسير ليکلو) دور:**

په شاته مراحلو کې تفسير د روايت او تلقين په طرز و،يعني خلکو به د يو بل څخه د تفسير اقوال نقل کول،البته تدوين هم په کم مقدار کې موجود و،بيا د اولنۍ صدۍ په اخير کې د تدوين زمانه شروع شوه،نو علماو د حديث باره کې په ابوابو مشتمل کتابونه وليکل،او د تفسير تدوين په لاندې مراحلو تير شوی:

۱ـ د حديث په کتابونو کې د تفسير د رواياتو باب قايمول،لکه څنګه چې د حديث په کتاب کې د طهارت،مونځ،حج وغيره بابونه وي،دغه شان د تفسير باب هم علماو د حديث په کتابونو کې کيخود،البته د تفسير باره کې مستقل کتاب نه و ليکل شوی،چې د يو يو ايت تشريح د قران د اول نه تر اخير پورې وکړي.

هغه علما چې د حديث په کتابونو کې يې د تفسير باره کې مستقل بابونه کيخودل په لاندې ډول دي:

يزيد بن هارون،شعبه بن الحجاج،وکيع بن الجراح،عبد بن حميد وغيره.

**ددې مرحلې خصوصيات:**

۱ـ دوی د تفسيري اقوالو د سند خاص خيال ساته.

۲ـ تفسير يې په مستقل كتاب كې نه و جمع كړى،بلكې د حديث په كتاب كې يې د يو باب په شكل.

۳ـ دغه باب صرف په مرفوع حديث نه و مشتمل،بلكې د صحابي او تابعي اقوالو ته هم شامل و.

**دويمه مرحله:**

پدې مرحله كې تفسير مستقل علم وګرځيد،د مصحف په ترتيب سره د قران كريم ټولو سورتونو ته شامل و.

ابن تيميه او ابن خلكان وايي:د تفسير باره كې اولنى كتاب عبدالملك بن جريج ليكلى او پدې مرحله كې چې كومو علماو كتابونه وليكل هغوى هر يو:

ابن ماجه،ابن جرير الطبري،ابو بكر بن المنذر،ابن ابى حاتم،ابن حبان،الحاكم،ابن مردويه وغيره.

**ددې مرحلې تدوين په لاندې خصوصياتو مشتمل دى:**

۱ـ پدې مرحله كې د تفسير كتابونه په تفسير بالماثور(قران حديث،قول صحابي) باندې مشتمل و،د تفسير بالراى هيڅ وجود نه و.

۲ـ پدې مرحله كې د تفسير هر قول په متصل سند سره قايل ته منسوبيده.

۳ـ البته دوى د حديث د صحت او ضعف پرواه نده كړې،بلكې ابن جريج خو د ايت په تفسير كې هر صحيح او ضعيف حديث ذكر كړى،ځكه دوى به حديث،يا د صحابي قول په سند سره ذكر كړ،او حكم به يې پرې نه لګوو.

۴ـ ارسراييلي روايات په كتابونو كې په كثرت سره وليكل شو.

**دریمه مرحله:**

د تفسیر په تاریخ کې دغه مرحله خطرې موړ و،پدې مرحله کې مفسرینو د سلفو اقوال په تفسیر کې د سند نه بغیر نقل کول شروع کړل،نو صحیح او ضعیف ګډوډ شول،او دا د اسلام ددشمنانو لپاره لار کولاو شوه چې په دین کې د ځانه اضافه وکړي،لیکن الله د دین د حفاظت لپاره علما پیدا کړل،چې صحیح حدیث د ضعیف څخه جدا کړي،او د دین د دشمنانو خرافات رد کړي.

پدې مرحله کې تفسیر بالرای(په اجتهاد سره د قران ایت شرح کول) هم شروع شول،او رای په دوه قسمه ده محمود او مذموم،خلکو د علم نه بغیر د ایت د تشریح جرات وکړ،د یو ایت په تفسیر کې اقوال زیات شو،بغیر د سند نه د تفسیر باره کې هر یو قول چې چاته میلاو شو،د ایت لاندې یې نقل کړ،نو ورته خلک راغلل،او ددوی ړوند تقلید یې وکه،چې نه یې د سند د صحت معلومات وکړل،او نه د روایت اصل یې معلوم کړ.

**څلورمه مرحله:**

دا مرحله د سابقه مرحلې نتیجه ده،نو د تفسیر دروازه پوره کولاو شوه،او هر څه ورداخل شو،یعني صحیح او غلط ټول،او دا باب زمونږ د زمانې پورې کولاو دی،د سلفو په زمانه کې تفسیر د قران حدیث او صحابه او تابعینو د اقوالو څخه اخذ کیده،لیکن پدې مرحله کې په رای باندې اعتماد کوي،دا ځکه چې په اسلام کې ډیرې ډلې پیدا شوې،نو د هر مذهب مولیانو د خپل مذهب د تایید لپاره د قران ایتونه استعمال کړل،او د هر فن عالم باندې

ددغه  علم اثر غالب و،نو د قران په تفسیر کې یې نور علوم داخل کړل،نو فقیه د تفسیر کتاب د فقهي مسایلو څخه ډک کړ،داسې چې د خپل مذهب د فرعي مسایلو دفاع یې کوله،او په مخالفینو یې رد کوو،لکه قرطبي او جصاص،او د بعضې علماو تفاسیر د قصو څخه ډک کړل،لکه ثعلبي،او نحویانو چې تفسیر ولیکه نو د هغوی ټول هم او غم اعراب او ترکیب و،لکه زجاج واحدي او ابو حیان،او د علم کلام او منطق مولیانو د فلاسفه و او حکماو اقوال په کثرت سره په تفسیر کې ذکر کړل،لکه امام رازي.

دغه شان مونږ گورو چې د هر فن مولا او د هر مذهب مقلد د قران تفسیر د خپل فن او مذهب مطابق کوي،او ایتونه پرې حمل کوي،اگر که احتمال بعید ولې نه و.

نو دا د تفسیر مراحل وو،او باید مونږ دا خبره یاده کړو،چې دا مراحل د یو بل څخه جدا ندي،بلکې د یو بل سره یې تعلق شته،د راتلوني مرحلې بنیاد په تیره کې وجود لري.

**د تدوین په زمانه کې مهم کتابونه:**

د تدوین د زمانې نه تر اوسه پورې چې څومره د تفسیر کتابونه لیکلی شوي،د هغې ټولو ذکر کول،اسانه ندي،نو باید مونږ اهم کتابونو ته اشاره وکړو:

۱ـ جامع البیان في تفسیر القرآن چې په تفسیر طبري سره معروف دی.

۲ـ بحر العلوم د ابو اللیث السمرقندي.

۳ـ الکشف والبیان عن تفسر القرآن د ثعلبي.

۴ـ معالم التنزيل د امام بغوي.

۵ـ المحرر الوجيز في تفسير الكتاب العزيز د ابن عطيه.

۶ـ الدر المنثور في التفسير بالماثور د سيوطي.

۷ـ تفسير القرآن العظيم چې په تفسير ابن كثير سره مشهور دی.

۸ـ الجواهر الحسان فی تفسير القرآن د ثعالبي.

۹ـ فتح القدير د امام شوكاني.

۱۰ـ اضوا البيان فی ايضاح القرآن بالقرآن د شنقيطي.

هغه كتابونه چې د قران تشريح په اجتهاد او راى سره كوي:

۱ـ الكشاف د امام زمخشري.

۲ـ مفاتيح الغيب د امام رازي.

۳ـ مدارک التنزيل وحقايق التاويل د نسفي.

۴ـ لباب التأويل في معاني التنزيل د خازن.

۵ـ البحر المحيط د ابو حيان.

۶ـ انوار التنزيل واسرار التاويل د بيضاوي.

۷ـ تفسير الجلالين د جلال الدين محلي او جلال الدين السيوطي.

۸ـ ارشاد العقل السليم الى مزايا الكتاب الكريم د ابو سعود.

۹ـ روح المعاني في تفسير القرآن العظيم والسبع المثاني.

۱۰ـ تفسير المنار د محمد رشيد رضا.

۱۱ـ في ظلال القرآن د سيد قطب.

## د مفسرينو د اختلاف اسباب:

صحابه د قران په معنی پوهيدل،ځکه عرب وو،کوم ايت چې به مشکل و،رسول به ورته تفسير کړ،او د بعضو ايتونو د معنی دلالت،او احکامو په رايستلو کې يې اجتهاد هم کړی،ددوی علم يو شان نه و،ځکه بعضو ته د سبب نزول معرفت او د ايت د فهم باره کې نور قراين معلوم و،او بعضو نورو ته نه،همدا وجه وه چې ددوی په مابين کې اختلاف واقع و،ليکن د اختلاف مقدار کم و،او ددې ډير وجوهات دي:

۱ـ ددوی په مابين کې پيغمبر موجود و،د اختلاف په وخت کې به يې هغه ته رجوع کوله.

۲ـ رسول الله به د قران په اړه هغوی د اختلاف څخه منع کول،په حديث کې راځي،چې د صحابه و يو جماعت د رسول الله ددراوزې خواته ناست وو،نو بحث يې وکړ،بعضو وويل:ايا الله دارنگه ندي ويلي؟نورو وويل:ايا الله داسې ندي ويلي.

نو رسول الله خبر شو،راووت او ويې فرمايل:ايا تاسو ددې لپاره الله پيدا کړي يئ چې د الله کتاب د يو بل سره وجنگوئ؟پخواني امتونه خو پدې وجه گمراه شوي وو،الله چې څه حکم کړی،په هغې عمل وکړئ،او د څه نه چې منع شوي ياست د هغې نه منع شئ.

۳ـ د صحابه و پراخه علم د اختلاف د کموالي دريم سبب دی،ځکه دوی د عربي ژبې په مفرداتو اساليبو باندې پوهه لرله،ددې په وجه هغوی ته د قران د ډيرو ايتونو پوهه اسانه شوه.

۴ـ څلورم سبب پدوی، باندې د زمانې اثر ځکه د زمانې اثر وي په خلکو باندې،او دا معلومه خبره ده چې د صحابه و زمانه د ټولو زمانو څخه بهتره ده،همدا وجه ده چې ابن تیمیه فرمایي:په تفسیر کې د صحابه و اختلاف کم و،البته په تابعینو کې اختلاف ډیر و،خو دومره نه و لکه وروسته خلکو کې چې پیدا شو،ځکه هر کله چې یوه زمانه بهتره وي،د هغې د بهتروالي په وجه اختلاف کم وي.

همدا وجه ده چې د زمانې په تیریدو سره اختلافات زیات شو.

اختلاف په دوه قسمه دی،اختلاف التضاد او اختلاف التنوع او اختلاف التنوع څه باک نکوي،او د صحابه و اختلاف هم ددې قسم څخه دی:

**د اختلاف التنوع اقسام:**

مونږ کولی شو چې د سلفو په مابین کې واقع اختلاف څو قسمه ته تقسیم کړو:

۱ـ د هر یو مفسر مقصد یو وي،خو هر یو د هغې مقصودي معنی څخه په مختلفو الفاظو تعبیر وکړي.

مثلا د صراط مستقیم په تفسیر کې بعضې وایي:قران مراد دی،بعضې وایي:اسلام،یو قول دادی چې سنت او جماعت،بل قول:دلته مراد الله او رسول تابعداري ده،نو دا ټول اقوال په یو مقصود دلالت کوي،لیکن د هر عالم تعبیر جدا دی.

۲ـ چې هر یو مفسر د عام لفظ بعضې انواع د مثال په طور ذکر کړي،مثلا د الله دا قول:

بعضې وايي:دلته د سابق نه مراد هغه کس چې په اول وخت کې مونځ ادا کوي،مقتصد هغه چې په درميانه وخت کې،او ظالم هغه چې د مازيگر مونځ ناوخته کوي، تر دې چې نمر زيړ شي.

بعضې وايي:سابق هغه چې صدقه ورکوي،ظالم چې سود خوري،او مقتصد چې تجارت کوي. وغيره نو دا ټول انواع د عام لفظ لاندې راځي.

۳ـ کله لفظ ددوه معانو احتمال لري:

لکه د قسوره لفظ د ويشتونکي په معنى راځي،او د زمري په معنى هم.

۴ـ د معانو څخه په داسې الفاظو تعبير کول چې يو بل ته نژدې وي:

مثلا د الله دا قول(ان تبسل) بعضې ووايي مطلب يې دى چې ان تحبس وتړلى شي،او بعضې وايي:ان ترتهن چې گاڼه کړى شي.

نو دا ټول اقسام د تنوع دي،او تضاد پکښ نشته،او پدې قسم اختلاف کې هيڅ ضرر نشته،زرکشي وايي:د تفسير په کتابونو کې د يو ايت په تشريح کې د مفسرينو مختلف اقوال راځي،نو څوک چې ناپوهه دى گمان کوي،چې دا اختلاف دى،حالانکه داسې نده،ديته اختلاف نه وايي:بلکې يو مفسر د ايت ظاهري معنى کړي وي،او بل لازمي معنى،دريم د ايت ثمره ذکر کړي، او د ټولو مقصد يو وي،صرف په عبارت کې اختلاف شته،خو مراد يو دى.

**د اختلاف اسباب:**

د تفسير په باب کې د مفسرينو اختلاف لاندې اسباب ته راجع دى:

**۱ـ کله يو ايت کې د يو نه زيات قراتونه وي**،نو يو مفسر د يو قرات مطابق تفسير وکړي،او بل د بل قرات.

مثال په طور د الله دا قول: **لَقَالُوا إِنَّمَا سُكِّرَتْ أَبْصَارُنَا بَلْ نَحْنُ قَوْمٌ مَّسْحُورُونَ (15)**

مجاهد وايي: دلته د سكرت نه مراد بنديدل دي او ابن عباس وايي:چې جادو پرې وکړی شي،نو د اختلاف سبب د قرات مختلف والی دی ځکه مجاهد د سکرت په شد سره قرات تفسير کړی او ابن عباس د مخفف سکرت تفسير کړی.

دويم مثال:د الله دا قول: **سَرَابِيلُهُم مِّن قَطِرَانٍ وَتَغْشَىٰ وُجُوهَهُمُ النَّارُ (50)**

حسن بصري واي:د قطران نه مراد ..

او ابن عباس وايي:ددې نه مراد ويلي شوې تانبه ده.

نو حسن بصري د قطران د قرات لحاظ کړی،چې د را نه لاندې تنوين نشته.

او ابن عباس د قطر ان قرات چې د را نه لاندې تنوين او قطر جدا لفظ دی او ان جدا.

**۲ـ د اختلاف دويم سبب: د اعراب په وجوهو کې اختلاف** ځکه اعراب په معنی باندې اثر لري،د فاعل او مفعول به مابين کې فرق دادی چې فاعل مرفوع دی او مفعول به منصوب، نو که څوک قصدا يو حرکت هم بدل کړي،کافر به شي،لکه د الله دا قول:که څوک د رسوله (ل) نه لاندې د پيش په ځای زير ووايي نو کافر به شي.

نو دا دليل دی چې د اعراب تاثير په معنی باندې څومره ډېر دی.

په اعراب کې د اختلاف مثال:د الله دا قول: **وَالرَّاسِخُونَ فِي الْعِلْمِ يَقُولُونَ آمَنَّا بِهِ كُلٌّ مِّنْ عِندِ رَبِّنَا ۗ وَمَا يَذَّكَّرُ إِلَّا أُولُو الْأَلْبَابِ (7)**

بعضو ویلي (الراسخون) عطف دی په الله باندې نو معنی دا شوه چې الله هم د متشابه په تفسیر پوهیږي او علما هم.

او بعضې وايي:نه راسخون مبتدا ده نو مطلب دا شو چې صرف الله پوهیږي او د راسخینو کار دادی چې تسلیم شي.

**۳ـ کله یو لفظ مشترک وي**،د یوې ځخه ډیرو معنو ته شامل وي،په اشتراک لغوي سره نو یو مفسر یې په یوې معنی حمل کړي او بل یې په بله معنی او دواړه تفسیرونه صحیح دي،لکه د نکاح لفظ په عقد او جماع دواړو حمل کول صحیح دي.

او اشتراک صرف په فعل او اسم کې ندی واقع بلکې په حرف کې هم واقع دی،لکه مثلا (من) حرف د ابتدا په معنی هم راځي لکه د الله دا قول:

او د بعض په معنی راغلی دی لکه دا ایت:

**وَ مِنَ النَّاسِ مَنْ يُّعْجِبُكَ قَوْلُهٗ فِى الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَ يُشْهِدُ اللّٰهَ عَلٰى مَا فِىْ قَلْبِهٖ-وَ هُوَ اَلَدُّ الْخِصَامِ.**

او د سببیت په معنی راځي لکه:

کله یو لفظ مشترک نه دي خو مراد ترې په دوه کسه کې یو دی لکه ضمایر د الله دا قول: **ثُمَّ دَنَا فَتَدَلَّىٰ (8).**

یا اسم جنس لکه الفجر او والشفع والوتر وغیره.

**۴ـ کله په ایت کې د مطلق او مقید احتمال واقع وي:**

مطلق هغه لفظ چې په حقیقت باندې د قید نه بغیر دلالت کوي،او مقید هغه چې په معنی باندې د شرط او قید سره دلالت کوي.

او دا قاعده ده چې د مطلق په مقید باندې حمل کول صحیح دي کله چې سبب او حکم متحد وي،البته ددې څلور صورتونه دي چې د علماو په بعضو کې اختلاف شته ایا مطلق په مقید حمل کولی شو که نه؟نو ددې اختلاف په وجه یو عالم مطلق په مقید حمل کوي،او بل یې نه.

لکه مثلا:الله د قتل په کفاره کې د غلام سره د مومن قید لګولی او په ظهار کې یې ندی لګولی دغه شان د قسم په کفاره کې صرف د غلام لفظ دی د ایمان قید ورسره نشته،نو بعضې وایي:مطلق باید په مقید حمل کړی شي،لهذا په ظهار او قسم کې کافر غلام ازادول صحیح ندي،لکه څنګه چې په قتل د خطا کې صحیح ندي.

او بعضې علما وایي:چې مطلق نه حمل کوو په مقید باندې،لهذا د ظهار او یمین په کفاره کې د کافر غلام ازادول هم ذمه خلاصوي.

**۵ـ عموم او خصوص د اختلاف سبب دی:**

عام هغه لفظ چې په ډیرو افرادو دلالت کوي لکه د الله دا قول:

دا ایت هر غل سړي او ښځې ته بغیر د تخصیص نه شامل دی.

نو عموم او خصوص د مفسرینو د اختلاف سبب دی،ځکه دوی کله د یو لفظ باره کې اختلاف کړی وي چې ایا عام دی که خاص لکه دا ایت: **وَلَا تَنكِحُوا الْمُشْرِكَاتِ حَتَّىٰ يُؤْمِنَّ** .

بعضې وايي:د مشركات لفظ عام دی د یهودو او نصاراو ښځو ته هم شامل دی.

لهذا دا ايت: **وَالْمُحْصَنَاتُ مِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ**

ددغې لپاره مخصص دی.

او بعضې وايي:نه دغه ايت صرف مشرکاتو ته شامل دی،نو په دې بل ايت کې هيڅ تخصيص نشته.

**٦ـ حقيقت او مجاز د اختلاف سبب دی:**

حقيقت هغه لفظ چې په حقيقي معنی دلالت کوي،چې لغت کې د هغې لپاره دغه لفظ ايخودلی شوی،او مجاز دا چې يو لفظ په بله معنی دلالت وکړي.

البته د علماو مابين کې اختلاف شته چې ايا مجاز په قران کې شته که نه.

ددې مثال دا ايت: **وَأَنَّهُ هُوَ أَضْحَكَ وَأَبْكَىٰ (43)**

حسن بصري وايي:مطلب دا چې الله جنتيان په جنت کې خندوي،او جهنميان په جهنم کې ژړوي.

نو د اضحک او د ابکی حقيقي معنی يې کړې.

او ضحاک وايي:ځمکه يې په نبات راشنه کولو سره خندولې،او اسمان يې په باران سره ژړولی.

نو دا مجازي معنی شوه.

**۷ـ په اظهار او اضمار کې اختلاف:**

کله مفسرين د ضمير په مرجع کې اختلاف کوي،کله چې فاعل په فعل کې مستتر وي،لکه د الله دا قول:

بعضې وايي:دې نه مراد جبريل دی،او نور وايي:الله دی،چې محمد صلی الله عليه وسلم ته رانژدې شو

**۸ ـ په نسخ او احکام کې اختلاف:**

مثلا ددې ايت باره کې اختلاف:

جابر رضي الله عنهما وايي:دا ايت منسوخ ندی،او د هغه چا باره کې دی چې مثلا صحرا کې روان يې د قبلې معلومات ورته نشته.

او ابن عباس وايي:دا ايت منسوخ دی،ځکه اول رسول الله بيت المقدس ته مونځ کوو،او بيا يې ورته د کعبې حکم وکړ.

**۹ـ د حديث په وجه اختلاف:**

ځکه يو مفسر ته حديث رسيدلی او بل ته نه.

مثلا:د الله دا قول: **وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا يَتَرَبَّصْنَ بِأَنفُسِهِنَّ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا .**

او دا: **وَأُولَاتُ الْأَحْمَالِ أَجَلُهُنَّ أَن يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ ۚ وَمَن يَتَّقِ اللَّهَ يَجْعَل لَّهُ مِنْ أَمْرِهِ يُسْرًا (4).**

علي رضي الله عنه ددې ايتونو نه استدلال کړی و چې د کومې ښځې خاوند وفات شو،نو پدې کې به اوږد عدت تيروي.

شايد هغه ته سبيعه رضي الله عنها د هغې خاوند وفات شوی و،او هغه حامله وه،نو د وفات نه لږ وخت پس يې بچی پيدا شو،هغې د رسول الله ﷺ نه پوښتنه وکړه نو هغه وفرمايل:چې ته کولی شې نکاح وکړې.

## د تفسير اساليب(طريقې)

درې مصطلحات چې باحثين يې د اصول التفسير په کتابونو کې د بحث لاندې راولي هغه په لاندې ډول دي:

**۱ـ الاتجاه،۲ـ المنهج.۳ـ الاسلوب.**

د پخواني علماو په کتابونو کې دا مصطلحات وجود نلري،او پدې زمانه کې باحثين ددې الفاظو په معنى کې اختلاف لري،نو بعضې ورله يو تعريف ذکر کوي،او نور ورله بل شان.

زما په نزد پدې کې فرق شته:

نو اتجاه هغه هدف ته وايي چې مفسر ورته رسيدل غواړي.

او منهج هغې لارې ته وايي چې دغه هدف ته بوتلل کوي.

او اسلوب هغې طريقې ته وايي چې مفسر يې د منهج د انتخاب په وخت اختياروي چې هدف ته ورسيږي.

د وضاحت لپاره زه مثال بيانوم:څه خلک غواړي چې يو ښار ته سفر وکړي،د دغه ښار ددوی اتجاه ده،ليکن دوی مختلف مناهج اختيار کړل،بعضې په وچه سفر کوي،او بعضې نور د بحر په ذريعه او دريم قسم په جهاز کې سپاره شول نو دا مختلف مناهج دي،د يو اتجاه لپاره.

او اسلوب دادی چې يو جماعت ددوی څخه هدف ته تيزه لاره اختياره کړه چې هيڅ تفريح او سياحت پکښې نشته يعني جهاز او نورو د استراحت اسلوب اختيار کړ چې په مختلفو ښارونو به تير شي،سير به وکړي.

ددې مثال تطبیق په تفسیر باندې هم وکړه،نو اتجاه یا هدف د مفسر یا د عقیدې مسایل وي،چې وضاحت یې وکړي،یا ترې دفاع وکړي،نو پدې قسم مفسر باندې اتجاه عقدي غالب ده.

او دا مفسر د عقیدې د اثبات لپاره یو خاص لاره غوره کوي،مثلا بعضې د اهل سنت والجماعت په لاره ځي،بعضې د شیعه ګانو منهج،او بعضې نور د معتزله و په منهج تفاسیر لیکلي،څه نور شته چې د صوفیانو منهج یې انتخاب کړی.

ددوی اسلوب هم مختلف دی،نو بعضې داسي دي چې اول ایت ذکر کړي،بیا د ایت د الفاظو وضاحت،او اجمالي معنی،او د هغې نه احکام او مسایل رایستل،او څه مفسرین اول ایت ذکر کړي،بیا د الفاظو وضاحت او اجمالي معنی،دریم قسم مفسرین د یوې قضیې باره کې د قران مختلف ایتونه راجمع کړي،د مصحف د ترتیب مراعات یې نه وي کړی،کله مفسر په خپله رایه اکتفا کوي،او کله چې مفسرینو اقوال نقل کړي،خو ددې مابین کې مقارنه وکړي،او راجح بیان کړي،نو دیته اسلوب وایي.

**نو د مفسرینو اسالیب څلور دي:**

۱ـ التفسیر التحلیلي.

۲ـ التفسیر الاجمالي.

۳ـ التفسیر المقارن.

۴ـالتفسیر الموضوعي.

## اول:التفسير التحليلي:

پدې اسلوب کې مفسر د مصحف د ترتیب مطابق د قران د یو یو ایت وضاحت کوي،برابره ده که یو څو ایتونه تشریح کړي،او که یو سورت یا ټول قران.

بیا د هر یو ایت د الفاظو وضاحت په هغې کې د بلاغې وجوه بیانول،اسباب نزول،او احکام رایستل.

**ددې اسلوب خصوصیات:**

۱ـ دا په ټولو کې قدیم او زوړ اسلوب دی،تفسیر په پخواه زمانه کې په همدې اسلوب و،عبدالله بن مسعود فرمایي:کله چې به مونږ کې یو تن لس ایتونه ولوستل نو د هغې نه به یې تجاوز نه کوو،تر څو چې به د هغې په معنی او احکامو خبر نشول.

۲ـ دا اسلوب د تفاسیر په کتابونو غالب دی،او مشهور تفاسیر پدې اسلوب لیکلی شوي، لکه تفسیر طبري، خازن، ثعلبي، واحدي، بغوي، ابن عطیه، شوکاني، ابن کثیر وغیره.

۳ـ پدې اسلوب کې مفسرین مختلف دي،بعضې اختصار کوي،او بعضې نور د تطویل څخه کار اخلي،څه تفسیرونه په یو جلد کې دي،او څه خو په دریش جلده مشتمل دي.

۴ـ پدې اسلوب کې د مفسرینو مناهج او اتجاهات مختلف دیبعضې په نقل او ماثور باندې اعتماد کوي،او د اهل سنت د طریقې څخه تجاوز یې ندی کړی،او څه مفسرینو د اهل بدعت منهج اختیار کړی،څه داسې دي چې په

کثرت سره يې اسراييلي روايات،قصې،بيانې کړي،يو قسم مفسرين داسې هم دې چې د بلاغې قواعد يې په کثرت سره ذکر کړي،بعضې د احکامو متعلق ايتونه په تفصيل سره تفسير کوي،او يو قسم خو د ساينس په ذريعه د قران تشريح کوي،او نور داسې هم شته چې د نحو يا د علام کلام څخه يې د تفسير کتابونه ډک کړي.

**۲ـ التفسير الاجمالي:**

مفسر پدې اسلوب کې د مصحف د ترتيب مطابق يو يو ايت اجمالي طور سره شرح کوي،د ايت اهداف او مقاصد هم ذکر کوي.دې لپاره چې د قران فهم قاري او مستمع لپاره اسان وګرځي.

دا د ترجمه معنويه په څير دی،چې مترجم د الفاظو مراعات نکوي،بلکې د ايت عام مطلب واضحوي،کله کله خو سبب نزول يا قصه هم ذکر کوي.

دا قسم تفسير اکثر په راډيو يا ټي وي کې د عوامو د فايدې لپاره نشرولی شي.

د تفسير اجمالي په طريقه ليکل شوي تفاسير دادي:

۱ـتفسير کلام المنان د عبدالرحمن السعدي(د ابن العثيمين استاذ).

۲ـ التيسير فی احاديث التفسير محمد المکي الناصري.

۳ـ تفسير الاجزا العشره الاولی د محمود شلتوت.

## ۳ـ التفسير المقارن:

چې مفسر د يو ايت نه لاندې نصوص راجمع کړي،برابره ده که د قران ايتونه وي،که احاديث،د صحابه و يا تابعينو اقوال،يا د اسماني کتابونو ايتونه،او بيا ددې نصوصو مابين کې مقارنه وکړي،د دلايلو په مابين کې موازنه،او هغې کې يو ته ترجيح ورکړي.

پدې سره معلومه شوه چې ددې اسلوب ميدان واسع دی،او د مقارنې ډير وجوه شته:

۱ـ د يو قراني ايت مقارنه د بل سره کول،برابره ده که دواړه موافق دي،او که ظاهر کې يې اختلاف،او ديته تاويل مشکل القران وايي،ددې باره کې مصنفات معلوم دي،کله په دوه ايتونو کې مقارنه ددې لپاره وي،چې د يو ايت فهم په بل باندې متوقف دی،ځکه يو ايت بل لره تکميل دی،دا اکثر د قصو باره کې وارد ايتونو کې کيږي،ځکه قصه په يو مقام کې په اجمال سره ذکر شوې وي،او بل مقام کې يې تفصيل راغلی.

۲ـ د ايت او حديث مابين کې مقارنه کول،ځکه ددواړو مابين کې توافق دی،يا تعارض،علماو ددې مقارنې په اړه د مشکل القرآن او مشکل الحديث په اړه کتابونه ليکلي.

۳ـ کله مقارنه د قران ايت او د تورات يا انجيل د نص مابين کې کولی شي،دې لپاره چې د قران فضل ښکاره کړي،او دا چې هغه په ټولو سابقه کتابونو باندې مهيمن دی،او په تورات او انجيل کې خلکو تحريف کړی.

پدې باب کې ډېر کتابونه ليکل شوي چې اهم کتاب پکښې د موريس بوکاي دی،د (القرآن الکريم والتواره والانجيل والعلم) په نوم يادېږي.
بل کتاب(محمد في التوراه والانجيل والقرآن) د استاذ ابراهيم خليل.
۴ـ کله مفسر د نورو مفسرينو اقوال نقل کړي،او د هغې مابين کې مقارنه وکړي،د هر مفسر دلايل او د هغې مناقشه کول،او بيا دده په نزد راجح ته ترجيح ورکول.
د ټولو نه مخکې دا طريقه ابن جرير الطبري په خپل تفسير کې اختيار کړې،د ايت په تفسير کې مختلف اقوال ذکر کول،او راجح ته ترجيح ورکول،په ضعيف د ضعف حکم لګول سره د دليل ذکر کولو.

**۴ـ التفسير الموضوعي:**

پدې اسلوب کې مفسر د مصحف د ترتيب مطابق د يو يو ايت تشريح نکوي،بلکې د يو موضوع انتخاب کوي،او د هغې باره کې د قران کريم مختلف ايتونه راجمع کړي.
ددې اسلوب بنياد خو د رسول الله په زمانه کې وضع شوی و،البته دا مصطلح په څوارلسمه صدۍ کې په نوې جامه کې مينځ ته راغلی.
د سلفو په زمانه کې د تفسير موضوعي مختلف شکلونه مونږ وينو لکه:

**۱ـ د قران تفسير په قران سره کول:**

ځکه د يو موضوع متعلق د قران مختلف ايتونه په يو مقام کې راجمع کول،د تفسير موضوعي مهمه درجه ده،چې ستره نتيجه لري.

دا کار د ټولو نه مخکې رسول الله کړی،ځکه هغه پدې ایت کې د مفاتیح الغیب تشریح د قران په بل ایت سره کړې

د غیب چابیانې پینځه دي:

**۲ـ د احکامو د ایتونو تفسیر:**

پخوانو مفسرینو د فقهي مسایلو باره کې د قران ایتونه په مستقل کتابونو کې جمع کړي،او د هغې تشریح یې کړې،لکه دې باره کې کتابونه په لاندې ډول دي:

۱ـ الجامع لاحکام القرآن د قرطبي.

۲ـ احکام القرآن د جصاص.

۳ـ احکام القرآن د ابن العربي.

۴ـ نیل المرام من تفسیر آیات الاحکام د محمد صدیق حسن خان.

او د فقهي مسایلو باره کې د ایتونو تفسیر هم د تفسیر موضوعي قسم دی.

**۳ـ الاشباه والنظایر:**

پدې قسم کتابونو کې مفسر د قران یو یو لفظ ذکر کوي،د هغې معنی بیانول،او دا چې په قران کې په کومو مقاماتو کې وارد دی،او په څو معانو استعمال دی.

دې باره کې مشهور کتابونه په لاندې ډول دي:

- الأشباه والنظائر في القرآن الکریم د مقاتل بن سلیمان.
- التصاریف د یحیی بن سلام.
- بصائر ذوي التمییز في لطائف الکتاب العزیز د فیروز آبادي.

- نزهة الأعين النواظر في علم الوجوه والنظائر:لابن الجوزي.
- كشف السرائر في معرفة الوجوه والأشباه والنظائر د ابن العماد.
- الأشباه والنظائر في الألفاظ القرآنية التي ترادفت مبانيها وتنوعت معانيها.د ثعالبي.

پدې كتابونو باندې د لغت جانب غالب دی،ځكه دوی د هغه الفاظو د ذكر التزام كړی،چې په صورت كې متحد دي،او په هر سياق كې جدا معنی لري،او دا هم د تفسير موضوعي يو شكل دی.

**۴ـ تفسيري دراسات:**

د پخوانو علماو كوشش صرف په لغوي جانب پورې محدود نه و،بلكې هغوی د يو موضوع متعلق ايتونه هم جمع كړي، لكه د نسخ، قسم، مشكل، امثال، وغيره موضوعات.

نو دوی د ناسخ او منسوخ ايتونو په اړه مستقل كتابونه وليكل،دارنگه هغه ايتونه چې په قسم مشتمل دي،او دې باره كې مصنفات په لاندې ډول دي:

الناسخ والمنسوخ د أبو عبيدة القاسم بن سلام.

تأويل مشكل القرآن د ابن قتيبة.

أمثال القرآن ی ماوردي.

التبيان في أقسام القرآن د ابن القيم.

مجاز القرآن ی العز بن عبدالسلام.

ددې نه معلومیږي چې تفسیر موضوعي اگر چې په پخوا زمانه کې پدې شکل او نوم مشهور نه و،البته ددې بدايات موجود وو.
پدې زمانه کې د تفسیر موضوعي باره کې کتابونه ډیر شوي،مکتبات ترې ډک دي او دا میدان د باحثین لپاره کولاو کړی شوی.
همدا وجه ده چې د باحثینو د اسانتیا لپاره د قران ایتونه د موضوعاتو مطابق راجمع کړی شوي،او دې باره کې مشهور کتاب د مستشرق جول لابوم دی چې د تفصیل آیات القرآن الکریم په نوم یادیږي،او دا په ۳۵۰ موضوعاتو مشتمل دی،او باید دا خبره په ذهن کې کیږدو چې د تفسیر موضوعي باره کې مکمل تفسیر تر اوسه چا ندی لیکلی چې ټول قران ته شامل وي.

## د تفسیر موضوعي انواع:

دا په درې قسمه دی:
۱ـ باحث د قران کریم یو لفظ راواخلي،ددې باره کې د قران کریم ټول ایتونه راجمع کړي،یا ددې د مشتقاتو باره کې،بیا ددغې ایتونو تشریح او قران په څومره معانو کې استعمال کړې،او ددغه ایتونو دلالت واضح کړي.
د الاشباه والنظایر کتابونه هم دا طریقه اختیاروي،البته هغوی صرف د لفظ په معنی باندې اکتفا کړې،او د هغې د مختلفو مقاماتو مابین کې یې ربط ندی بیان کړی.
د تفسیر موضوعي ددې قسم باره کې لیکل شوي کتابونه په لاندې ډول دي:

- كلمة(الحق) في القرآن الكريم د الشيخ محمد بن عبدالرحمن الراوي.
- المصطلحات الأربعة في القرآن(الإله,الرب,العبادة,الدين) د أبو الأعلى المودودي.
- الأمة دلالتها العربية والقرآنية للدكتور أحمد حسن فرحات.
- الحمد في القرآن الكريم للدكتور محمد خليفة.
- من مفردات القرآن المنافقون للدكتور جميل غازي.
- تأملات حول وسائل الإدراك في القرآن الكريم للدكتور محمد الشرقاوي.

دويم قسم:

د يوې مسالې په اړه د قران مختلف ايتونه جمع كول،د هغې تحليل،مناقشه او مختصره شرح كول،او د مسالې باره كې د قرآن د حكم وضاحت.

پدې قسم كې د مفسر ټول تركيز په موضوع يې،نو ځان په قرااتو ذكر كولو نه مشغولوي،يا د اعراب وجوه،د بلاغې صورتونه،البته كه د موضوع سره يې تعلق يې نو بيانوي يې.

او دا د تفسير موضوعي مشهور قسم دى.

دې باره كې پخوا او اوس زمانه كې ډير كتابونه ليكل شوي،بلكې د اعجاز القرآن،ناسخ او منسوخ،احكام القرآن،امثال القرآن وغيره كتابونه ددې قسم څخه دي.

پدې زمانه كې د اجتماعي،اقتصادي،او سياسي موضوعاتو متعلق د تفسير موضوعي باره كې كتابونه په لاندې ډول دي:

آيات الجهاد في القرآن الكريم د كامل سلامة.

المال في القرآن د محمود غريب.

دستور الأخلاق في القرآن د محمد عبدالله.

التفسير العلمي للآيات الكونية في القرآن الكريم د حنفي أحمد.

القرآن والطب د محمد وصفي.

التربية في كتاب الله د محمود عبدالوهاب.

او داسې نور.

۳ـ د قرآن په يو سورت کې د موضوع انتخاب او ددغې سورت په رڼا کې يې دراسه کول.

دا قسم ددويم پشان دی،خو دايره يې د هغې نه تنګه ده.

د قرآن هر سورت په يو موضوع مشتمل دی،چې ټول ايتونه يې د هغې سره ربط لري،دې باره کې د سيد قطب تفسير(في ظلال القرآن) مهم دی،ځکه هغه د هر سورت په ابتدا کې د هغې مقاصد بيانوي.

ددې قسم مطابق ليکلی شوي کتابونه په لاندې ډول دي:

تصور الألوهية كما تعرضه سورة الأنعام دكتور إبراهيم الكيلاني.

نماذج من الحضارة القرآنية في سورة الروم د عبدالمنعم الشفيع.

قضايا العقيدة في ضوء سورة ق كمال محمد عيسى.

قضايا المرأة في سورة النساء د محمد يوسف.

سورة الواقعة  ومنهجها في العقائد محمود غريب.

ددې نه معلومه شوه چې تفسير موضوعي د تفسير يو مهم اسلوب دی،او ددې ډير خصوصيات دي،چې دا وخت د وضاحت يې ندی.

## د تفسیر طریقې:

الله تعالی په قران کریم کې د تدبر کولو حکم کړی،همدا وجه ده چې صحابه و او د امت نورو علماو پدې لاره کې محنت کړی،د قران معاني یې بیان کړي،او احکام یې ترې مستنبط کړي،هغوی که به په قران کریم کې د یو ایت تفسیر مونده کړ،نو په هغې به یې اکتفا کوله،او که د قران تفسیر به قران کې نه و،نو حدیث ته یې رجوع کول طریقه وه،او که د ایت په تفسیر کې به حدیث میلاو نشو،د صحابه و اقوالو ته به لاړل،او که دا هم نه وه،نو اجتهاد به یې کوو.

**لهذا د تفسیر طریقې دوه دي:**

**۱ـ تفسیر بالمنقول.**

**۲ـتفسیر بالرای.**

**او ددې وضاحت په لاندې ډول دی:**

### اول:تفسیر بالماثور یا تفسیر بالنقل:

چې په قران کې د یو مجمل ایت تفسیر راشي،یا حدیث،او یا د صحابي په قول کې،او د تابعي په قول کې اختلاف دی،چې ایا دا تفسیر بالماثور دی که تفسیر بالرای.

**ددې قسم فضلیت او مرتبه:**

دا د تفسیر اعلی قسم دی،ځکه چې:

۱ـ ځکه د قران د یو ایت تشریح خو الله په خپله په بل ایت سره کړي وي،او الله په خپل کلام ښه پوهه دی.

۲ـ یا به رسول الله په حدیث سره کړي يې،نو رسول الله خو د قران شارح دی.

۳ـ یا به صحابي کړي يې،نو هغوی په قران تر ټولو زيات پوهيدل.

او دا قسم د سند د صحت سره مشروط دی،چې سند به يې ثابت وي.

په تفسير بالماثور کې خرافات او د ځانه جوړ شوي روايات داخل کړی شوي او ددې مختلف اسباب دي چې بعضې په لاندې ډول بيانيږي:

۱ـ د اسلام دشمنانو چې په ظاهر کې يې اسلام قبول کړی و،او محرف اخبار يې د خپلو کتابونو څخه د تفسير په باب کې داخل کړل.

۲ـ هغه فرقې چې ځان اسلام ته منسوبوي،لکه روافض دوی د ځانه احاديث جوړ کړل او د رسول الله او صحابه و طرفته يې ددروغو نسبت وکړ.

۳ـ د صحابه و طرفته منسوب اقوال بغير د سند نه نقل کول چې حق او باطل او صحيح او ضعيف د يو بل سره ګډوډ شو.

لهذا تفسير بالماثور په دوه قسمه دی:

۱ـ هغه چې د صحت او قبولت په اړه يې دليل وجود ولري.

۲ـ هغه چې سند سره ندی ثابت،ددې قسم رد کول ضروري دي،او د ضعف بيان چې خلک پرې دهوکه نشي.

دا ګمان کول چې په تفسير بالماثور کې د مفسر کار صرف نقل دی،نور هيڅ د فهم سره يې کار نشته،غلط ګمان دی.ځکه پدې قسم تفسير کې مفسر د يو ايت تفسير په بل ايت سره کوي،يا حديث يا قول صحابي،سره

نو که چیرته مفسر د اجتهاد په درجه فایز ندی،نو دا عمل څنګه کولی شي؟او د تفسیر بالماثور لوستونکی هم په مشقت سره د مفسر مذهب او رای ته رسیدل کولی شي،دې لپاره د صاحب رای لپاره دا مشکل او خطرناک تفسیر دی،ځکه کوم مفسر چې په رای سره تفسیر کوي،هغه خپل قول په صراحت سره ذکر کوي،او کوم مفسر چې تفسیر بالماثور کوي،یعني اصل کې خو صاحب رای دی،خو په تفسیر کې یې د ماثور اسلوب اختیار کړی،نو دا خلکو ته دهوکه ورکولی شي،ځکه د خپلې رای تایید به په نصوصو سره کوي.

**د تفسیر بالماثور مصادر:**

او دیته طرق التفسیر هم وایي،هغه مصادر چې په تفسیر بالماثور کې مفسر ورته رجوع کوي:

اول:قران کریم:

او دا په ټولو کې بهتره طریقه ده،ابن تیمیه فرمایي:د ټولو نه ښایسته طریقه د قران تفسیر په قران سره کول دي،ځکه الله یو ځای کې اجمال کړی،نو بل ځای کې تفصیل.

ځکه که یو ځاې کې ایت مطلق راغلی،نو بل مقام کې یې تقیید شوی،یا عام راغلی،بل ځاې یې تخصیص شوی.

**د تفسیر القران بالقران مثال:**

الله تعالی فرمایي:

او ادم علیه السلام د خپل رب څخه بعضې الفاظ ازده کړل.

بل مقام کې یې ددې وضاحت کړی:

۲ـ حدیث:

ابن تیمیه فرمايي:که په قران کې دې د ایت تشریح مونده نکړه،نو حدیث ته لاړ شه،ځکه دا د قران شارح دی.

بلکې امام شافعي فرمايي:د رسول الله هر حکم د قران څخه اقتباس دی.

البته باید د روایت د سند تحقیق وکړی شي،چې ایا حدیث ضعیف دی که صحیح.

او الله د حدیث حفاظت د علماو په لاسونو کړی،همدا وجه ده چې کله هارون رشید د یو زندیق د وژلو اراده وکړه،چې د ځانه یې احادیث وضع کړي وو،نو زندیق وویل:ما خو د ځانه د حرام او حلال متعلق څلور زره احادیث وضع کړي،چې یو حرف یې هم رسول الله ندی ویلی،خو ما د ځانه منسوب کړي،نو هارون وویل:ابو اسحاق او عبدالله بن المبارک شته کنه،هغوی به یو یو حرف ترې راوباسي.

**سنت څرنګه د قران وضاحت کړی:**

ددې ډیر شکلونه دي:

۱ـ سنت د قران د مجمل ایت تشریح کړې،د مشکل وضاحت،د عام تخصیص،او د مطلق تقیید.

د اول مثال:د مونځونو وختونه،د رکعتونو تعداد،د مونځ کیفیت.

ددویم مثال:رسول الله د تور او سپین تار وضاحت کړی،چې ددې نه مراد د ورځ سپین والی او د شپې تورتم دی.

ددريم مثال:رسول الله د ظلم تخصيص په شرک سره کړی.

د څلورم مثال:د الله دا قول: **(وَالسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ فَاقْطَعُوا أَيْدِيَهُمَا جَزَاءً بِمَا كَسَبَا..)**

دې کې يد مطلق دی خو حديث کې يې تقييد راغلی،چې د څنګل پورې لاس مراد ندی،بلکې ښې لاس د مفصل الکف پورې مراد دی.

۲ـ د لفظ د معنی وضاحت يا د هغې متعلق بيانول:

لکه د مغضوب عليهم نه مراد په حديث کې يهود او د الضالين نه مراد نصارا دي.

۳ـ په قران کې بعضې مسايل نشته چې حديث کې په قران باندې زيادت شوی،لکه د زاني رجم کول په حديث سره ثابت دي.

۴ـ د تاکيد وضاحت:

سنت د حديث موافقت کې راځي لکه نبي صلى الله عليه وسلم فرمايي:د يو مومن لپاره جايز ندي چې د بل چا مال استعمال کړي،مګر که هغه راضي وي.

ددې موافقت په قران کې د الله دا قول دی: **وَلَا تَأْكُلُوا أَمْوَالَكُم بَيْنَكُم بِالْبَاطِلِ وَتُدْلُوا بِهَا إِلَى الْحُكَّامِ لِتَأْكُلُوا فَرِيقًا مِّنْ أَمْوَالِ النَّاسِ بِالْإِثْمِ وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ (188)**

ددې نه معلومه شوه چې حديث د تفسير بالماثور اهم مصدر دی.

**دريم مصدر:د صحابي قول:**

ابن تيميه فرمايي:که په قران او سنت کې تشريح مونده نکړې،نو د صحابي قول ته رجوع کوه،ځکه دوی په قران ښه پوهه لري،خصوصا د صحابه و علما.

**ځلورم مصدر:د تابعي قول:**

ابن تيميه فرمايي:که په قران،حديث،او د صحابي په قول کې د ايت وضاحت نه وي،نو د تابعي قول ته رجوع بايد وکړو،لکه مجاهد بن جبر،دا په تفسير کې يوه معجزه ده،او سعيد بن جبير وغيره.

د تفسير بالماثور حکم:

کله چې دا صحيح ثابت شي،قبلول يې ضروري،او ددې نه اعراض کول صحيح ندي.

**دويم:تفسير بالراي:**

د رای نه مراد اجتهاد دی،يعني په اجتهاد سره د قران تفسير.

کله چې په مفسر کې د اجتهاد شروط موجود دي،نو دده تفسير محمود دی،او کله چې خواهش پرست دی،او د مفسر شروط پکښې نشته نو تفسير يې مذموم دی.

نو پدې سره واضحه شوه چې تفسير بالرای په دوه قسمه دی:

۱ـ تفسير په رای محمود سره.

۲ـ تفسير په رای مذموم سره.

اولنی قسم:تفسير په محمود اجتهاد سره:

هغه تفسير ته وايي چې د قران سنت څخه ماخوذ وي،او مفسر په لغت کې مهارت لري،د عربۍ په اسلوب هم پوهه دی،او د شريعت په اصولو او فروعو خبير دی.

او رسول الله ابن عباس ته ددې قسم دعا کړې.

د تفسير بالراي المحمود حکم:

علماو ددې اجازه ورکړې خو په پورتنو شروطو،او ددوی دلايل په لاندې ډول دي:

۱ـالله فرمايي:

ايا دوی په قران کې تدبر نکوي.

ډير ايتونه شته چې د تدبر طرفته دعوت ورکوونکي دي.

۲ـ د ډيرو ايتونو په تفسير کې د صحابه و اختلاف پدې دلالت کوي چې هغوی اجتهاد کړی و.

**په رای مذموم سره تفسير:**

چې مفسر د شريعت په نصوصو اعتماد ونکړي،او د خواهش په بنا تفسير وکړي،او دا کار د بدعتيانو دی چې د خپل غلط مذهب د اثبات لپاره د قران ايتونه استعمالوي.

د تفسير بالرای المذموم حکم:

دا قسم تفسير حرام دی،ابن تيميه فرمايي:صرف په راي سره د قران تفسير کول حرام دي.

ددې په تحريم باندې د قران بيشماره ايتونه دلالت کوي،لکه الله فرمايي:

او هغه څه پسې مه ځه،چې علم دسره نشته،ځکه د ټولو حواسو باره کې به الله پوښتنه کوي.

په حديث کې راځي:چا چې د قران تفسير په راى سره وکه،او حق ته ورسيده،نو دده حق ته رسيدل هم غلط دي.

ددې باره کې د صحابه و او تابعينو څخه متعدد اقوال نقل دي،چې د هغوی په احتياط،او په قران کې د راى او اجتهاد کولو څخه په اجتناب دلالت کوي،لکه مسروق فرمايي:د تفسير څخه ډډه وکړئ،ځکه دا خو د الله له طرفه روايت دی.

## د تفسير مناهج:

کله چې په اسلام کې عجم داخل شو،او د مشرکانو نه علاوه،نور کفار لکه مجوس،نصارا وغيره و اسلام ته غاړه کيخوده،نو ددې اثر و،چې د تفسير مصادر ډير شو،نوي مصادر پيدا شو،او منحرف عقايد مخې ته راغلل،لکه شيعه گان،معتزله،خوارج،صوفيان،او هرې فرقې د ځان لپاره د تفسير يو منهج اختيار کړی و.

د مفسرينو اهداف جدا وو،چا په اصلي مصادرو اعتماد کړی،نو چا صرف عقل حاکم گنړلی،چا په يو خاص فن باندې تفسير ککړ کړی،لکه نحوي چې تفسير ليکلی نو د نحو د قواعدو څخه يې ډک کړی،دغه شان فقيه د فقه څخه،مورخ د تاريخ،او متکلمينو د علم کلام څخه.

د مفسرينو د مناهجو باره کې مختلفو علماو کتابونه ليکلي،مونږ به دغه مناهج په اختصار سره پيش کړو.

### اول:د تفسير بالماثور منهج:

الله فرمايي:

او تاته مونږ دا قران دې لپاره نازل کړی،چې خلکو ته د ايتونو وضاحت او تفسير وکړې.

همدا وجه وه چې صحابه و په تفسير کې قران،يا حديث ته رجوع کړې،او يا يې اجتهاد کړی،او وروسته تابعينو د هغوی څخه دا علم ازده کړی،نو ديته تفسير بالماثور وايي.

**د تفسیر بالماثور د روایت د ضعف اسباب:**

کله چې تفسیر بالماثور(یعني د رسول الله حدیث،د صحابي)قول د قران د تفسیرپه اړه په صحیح سند ثابت شي،نو مقبول دی،او په بل هر تفسیر مقدم دی،البته په تفسیر بالماثور کې ضعیف روایات داخل کړی شوي،نو باید احتیاط او تثبت وکړو،نو د بحث او تحقیق نه وروسته به روایت قبلولی شي،او د تفسیر په باب کې روایات داخل کړی شوي،ددې اسباب په لاندې ډول دي:

**۱ـ وضع:**

کله چې گمراه فرقې مینځ ته راغلې،نو هغوی غوښتل چې خپل عقاید د قران په نصوصو سره تایید کړي،او کله چې هغوی په خپل تایید کې نصوص مونده نکړل،نو د ځانه یې احادیث وضع کړل،لکه معتزله،روافض،او صوفیان،همدا کار د اسلام په اولنۍ صدیو کې هغه کسانو کړی،چې مقصود یې بادشاهانو ته تقرب حاصلول وو،او د اسلام دشمنانو کله چې په توره د اسلام د کمزوري کولو څخه عاجز وگرځیدل.

**۲ـ اسراییلي روایات:**

قران د پخوانو امتونو قصې په اجمال سره ذکر کړي،انساني نفس تفصیل طلب کوي،لهذا مسلمانانو به د یهودو د علماو څخه ددې قصو د تفصیل پوښتنه کوله،کوم یهود چې په اسلام کې داخل شوي وو،نو دارنگه د تفسیر په کتابونو کې اسراییلي روایات داخل شو،او دا خبره معلومه ده چې تورات

او انجیل د تحریف څخه خالي نه وو،لهذا اسراییلي روایات ددرې حالاتو څخه د یو نه خالي ندي:

۱ـکله چې اسراییلي روایت زمونږ د شریعت د اصولو برابر و.

۲ـ چې مخالف وي.

۳ـ نه مخالف وي او نه موافق.

د اولني قسم په قبلولو کې هیڅ حرج نشته،ددویم قسم بطلان واضح دی،او ددریم نه تکذیب کولی شو،نه تصدیق.

لهذا په تفسیر بالماثور کې تثبت پکار دی،چې اسراییلاتو ته توجه وکړو.

**۳ـ د سند حذف:**

په ابتدا کې د صحابه و اقوال په سند سره د یو بل څخه نقل کیدل،کله چې فتنه واقع شوه،نو خلکو سند حذف کول شروع کړل،دې لپاره چې د صحیح او ضعیف امتیاز ختم شي،نو پدې وخت کې د سند پیژندل ضروري امر وګرځید.

د تفسیر بالماثور تدوین(په کتابونو کې لیکل):

ابن عباس رضي الله عنهما مجاهد ته تفسیر بیان کړی،او هغه لیکلی،د عبدالملک بن مروان په درخواست سعید بن جبیر د تفسیر یوه صحیفه لیکلې وه،ابو العالیه د ابي بن کعب یوه نسخه لیکلې،د معتزله و شیخ عمرو بن عبید د حسن بصري څخه تفسیر لیکلی،د زید بن اسلم سره د تفسیر یو کتاب وجود لره،اسماعیل بن سدي د تفسیر کتاب لیکلی و.

لهذا د ابن تيميه دا خبره غلطه ده چې په تفسير کې اول کتاب ابن جريج ليکلی،او په يقين سره دا ويلی شو،چې اولنی تفسير چې شامل او کامل دی،هغه د ابن جرير الطبري تفسير دی،چې په ۳۱۰ کې وفات شوی.

د تفسير بالماثور په طرز ليکل شوي تفاسير:

جامع البيان عن تأويل آي القرآن لابن جرير الطبري.

تفسير القرآن العظيم د ابن أبي حاتم الرازي.

بحر العلوم:لأبي الليث السمرقندي.

الکشف والبيان عن تفسير القرآن لأبي اسحاق الثعلبي.

معالم التنزيل لأبي محمد الحسين بن مسعود.

المحرر الوجيز لابن عطية.

تفسير القرآن العظيم لابن کثير الدمشقي.

الجواهر الحسان في تفسير القرآن:عبدالرحمن الثعالبي.

الدر المنثور في التفسير بالمأثور:جلال الدين السيوطي.

فتح القدير الجامع بين فني الرواية والدراية من علم التفسير:محمد بن علي الشوکاني.

أضواء البيان في إيضاح القرآن بالقرآن:محمد الأمين الشنقيطي.

**د تفسير فقهي منهج:**

الله تعالی قران کريم د عظيم حکمتونو لپاره نازل کړی،چې د هغې څخه بعضې په لاندې ډول دي:

**۱ـ د عقيدې اصلاح.**

**۲ـ د اخلاقو برابرول.**

په قران کې د عقایدو باره کې وارد ایتونه د اولني حکم لپاره کافي دي،او ددویم لپاره د احکامو ایتونه مختص دي.الله دا احکام دخلکو لپاره مشروع کړي،نو چا چې ددې نه بغیر عمل وکړ،گمراه شو،او چا چې ددې نه علاوه په بل څه فیصله وکړه،نو کافر شو،او قران ټول یا اکثر ایتونه په عقایدو او احکامو مشتمل دي،ځکه د قصو،وعد او وعید ایتونه هم بدې دواړو کې داخل دي.

دې کې هیڅ شک نشته چې ایت همیشه د مسالې باره کې صریح نه وي،نه په هغې باندې قطعي طور سره دلالت کوي،لکه څنگه چې د رسول الله احادیث یو شان ندي،بلکې بعضې ضعیف او بعضې نور صحیح دي.

همدا وجه وه چې اجتهاد ته اړتیا پیښه شوه،او د فقه په نوم یو علم مخې ته راغلی،نو صحابه و په قران کې تدبر وکړ،او د هغې څخه یې احکام مستبنط کړل،په ډیرو مسایلو کې هغوی متفق وو،البته بعضې وختونو کې یې اختلاف هم کړی،او ددوی اختلاف د راتلونکو فقهاو د اختلاف لپاره بنیاد و،بیا د هر مذهب فقهاو د خپل مذهب مطابق د احکامو د ایتونو باره کې تفاسیر ولیکل،او ددې باره کې مشهور کتابونه په لاندې ډول دي:

**د حنفي مذهب کتابونه:**

تفسیر أحکام القرآن:لأبي بکر الرازي المعروف بالجصاص في ثلاثة مجلدات.

التفسیرات الأحمدیة في بیان الآیات الشرعیة:ملا جیون.في مجلد واحد.

**د مالكي مذهب تفاسير:**

تفسير أحكام القرآن:لأبي بكر بن العربي في أربعة مجلدات.

الجامع لأحكام القرآن:لأبي عبدالله القرطبي في عشرة مجلدات.

د شافعي مذهب تفاسير:

أحكام القرآن د امام شافعي.

أحكام القرآن:إلكيا الهراسي في مجلدين.

الإكليل في استنباط التنزيل د سيوطي في مجلد.

القول الوجيز في أحكام الكتاب العزيز د أحمد بن يوسف الحلبي.

د حنبلي مذهب:

زاد المسير في علم التفسير د ابن الجوزي په نهه جلده كې،دې تفسير كې صرف د احكام په ايتونو اكتفا نده كړې،بلكې ټول قران يې تفسير كړی،البته ايات الاحكام يې په تفصيل سره شرح كړي.

پدې صدی كې هم مختلفو علماو د ايات الاحكام په اړه تفاسير ليكلي:

نيل المرام في تفسير آيات الأحكام د محمد صديق حسن خان في مجلد.

روائع البيان د محمد علي الصابوني في مجلدين.

تفسير آيات الأحكام محمد علي السايس.

تفسير آيات الأحكام مناع القطان.

**دريم منهج:د تفسير علمي(ساينس) منهج:**

كله چې بشريت په گمراهۍ اخته و،الله هغوی ته رسول وليږه،او قران كريم يې د هدايت لپاره نازل كړ،نو هغوی يې د تيارو څخه رڼا ته راويستل،قران

کریم د خلکو په قانع کولو کې د حجت او برهان مسلک اختیار کړی،د تفکر او تدبر امر يې کړی،او د وجود مظاهر يې بيان کړي،لکه د اسمانونو او ځمکو پيدايشت،د انسان،جن،او ملايکه و پيدا کول،د وريځې چلول،د باران نزول،د نمر او سپوږمۍ روانيدل،د مور په خيټه کې د ماشوم وجود،سمندرونه،غرونه وغيره.

او ساينس د ترقۍ باوجود د قران کريم يوه قاعده او حقيقت هم مات نکړی شو،او ديته اعجاز علمي وايي.

بعضې مفسرينو د ساينس په قواعو سره د قران تفسير کړی،په خپلو تفاسيرو کې يې په کثرت سره د فلک د هغې نظام،د ستورو د جريان،او د انسان د پيدايشت د اسرارو وغيره باره کې خبرې کړي،او د هغې څخه يې ظاهري او خفي دلالات مستنبط کړي.

**د تفسير علمي حکم:**

پدې کې د علماو اختلاف دی:بعضې يې بد  ګنړي،او نور يې تاييد کوي،او دريمه ډله معتدله ده،او د هر يو جماعت سره خپل دلايل دي:

**کوم خلک چې د تفسير علمي تاييد کوي د هغوی دلايل:**

۱ـالله تعالی د خپل علم،قدرت،او حکمت لپاره د اسمانونو او ځمکو په احوالو،د شپې او ورځ په تګ راتګ،د نمر او سپوږمۍ په بدليدو يې استدلال کړی،نو که چيرته ددې امورو باره کې بحث جايز نه وی،الله به خپل کتاب کې نه کولی.

۲ـ په تفسير علمي سره د قران د اعجاز نوي وجوه ښکاره کيږي.

**کوم علما چې دا جایز نه ګنړي،د هغوی دلایل:**

۱ـ د قران کریم اعجاز ثابت دی،دې متکلف مسلک ته ضرورت نشته.

۲ـ قران کریم په دې شیانو کې عام تفکیر ته دعوت ورکړی،او ددې مقصد د لطایفو او دقایقو په اړه بحث ندی.

**۳ـ د ساینس قواعد یقیني ندي.**

راجح قول:

دادی چې علمي حقایق په تفسیر کې راوړل هیڅ حرج نلري،هغه حقایق چې د شک څخه خالي یې،او تفسیر علمي قبلول په لاندې شروطو سره مشروط دی:

۱ـ دغه مباحث باید د قران د مقصد(هدایت) څخه تجاوز ونکړي.

۲ـ دا علوم باید د مسلمان د شعور دیني د پیاوړتیا او د عقیدې ددفاع لپاره وي.

۳ـ دا ابحاث باید د مسلمانانو د راپورته کولو لپاره وي،چې د قران عظمت یې زړونو کې پیدا شي،او ددې امت عزت راوپس کړي.

۴ـ په جزم سره ونه ویل شي چې همدا د ایت مطلب دی،او نص ددې نه علاوه په بله معنی دلالت نکوي،بلکي دا ابحاث خو د معنی د وسعت لپاره ذکر کولی شي،ځکه کیدای شي سبا له د ساینس دا قاعده یا حقیقت بدل شي،یا باطل ثابت کړی شي،نو د قران د ایت بطلان به لازم راشي.

**د ساینسي تفسیر باره کې لیکل شوي کتابونه:**

التفسیر الکبر:الفخر الرازي.

الجواهر في تفسير القرآن الكريم:طنطاوي جوهري.

كشف الأسرار النورانية القرآنية:محمد بن أحمد.

القرآن ينبوع العلوم والعرفان:علي فكري.

التفسير العملي للآيات الكونية:حنفي أحمد.

**څلورم:د تفسير عقلي منهج:**

ديته تفسير بالاجتهاد،تفسير بالراى،تفسير بالدرايه،تفسير بالعقل وايي.

دا منهج كله پيدا شو:

د صحابه و په زمانه كې مينځ ته راغلى،ځكه هغوى به د بعضې ايتونو په تفسير كې اجتهاد كوو،همدا طريقه د تابعينو په زمانه كې هم وه،تر دې چې فرقې او مختلف مذاهب پيدا شو،هغه خلک چې قران يې د خپل خواهش او مذهب مطابق تفسير كړ،ددوى تفسير قران،حديث،لغت باندې معتمد نه و،بلكې صرف په راى باندې مبني و،همدا وجه ده چې د تفسير بالراى باره كې اختلاف پيدا شو،بعضې علماو ترې مطلقا منع وكړه،او بعضو جايز كړ.

د هغه علماو دليل چې د تفسير بالراى څخه منع كوي:

١ـ د قران ډير نصوص د جهل په بنياد د خبرې كولو څخه منع كوي،لكه الله فرمايي:

او الله دا كار حرام كړى چې تاسو د هغه طرفته په جهل سره څه منسوب كړئ.

۲ـ د رسول الله احاديث د جهل په بنياد د قران د تفسير څخه مانع دي،لکه رسول الله فرمايي:چا چې د قران تفسير بغير د علم څخه وکړ،نو ځان لپاره دې اور کې ځاي ونيسي.

۳ـ الله خپل رسول ته فرمايلي:چې ما پتا باندې دا قران نازل کړی چې خلکو ته وضاحت او تفسير وکړې.

دا دليل دی چې د قران د تفسير حق صرف رسول الله ته حاصل دی.

کوم علما چې د تفسير بالرای د جواز قايل دي،د هغوی دلايل:

د قران ډير نصوص د تدبر دعوت ورکوي،الله فرمايي:دا مبارک کتاب مونږ نازل کړی،دې لپاره چې خلک ددې په ايتونو کې تدبر وکړي.

۲ـ رسول الله ابن عباس ته دعا کړې وه چې الله ورته د قران د تفسير علم ورکړي،دلته د تاويل نه مراد تفسير بالرای دی،ځکه که تفسير بالماثور مراد وی،نو دې کې خو ټول صحابه برابر دي،نو د ابن عباس د تخصيص څه معنی.

۳ـ د بعضې ايتونو په تفسير کې د صحابه و اختلاف واقع شوی،نو که د هر ايت د تفسير باره کې نص وی،بيا خو اختلاف نه واقع کيده،ځکه نص به فيصل وی.

راجح قول:

تفسير بالرای کې جايز هم شته او ممنوع هم،که قران په رای محمود سره تفسير کړی شي،نو جايز،او که رای مذموم سره وشي،نو حرام،او د مانعينو دلايل پدې نوع باندې حمل دی،همدا وجه ده چې ابن تيميه د سلفو د

مذكوره اقوالو نه پس فرمايي:د سلفو دا اقوال د جهل په بنياد په تفسير کې په اجتهاد كولو حمل دي،البته كه څوک د قران په تفسير کې اجتهاد وکړي،او په دې باب کې يې اعتماد په شرع يا لغت کړی و،هيڅ باک نشته.

هغه كتابونه چې په رای محمود سره يې د قران تفسير کړی:

مفاتيح الغيب:فخر الدين الرازي.

أنوار التنزيل وأسرار التأويل:ناصر الدين البيضاوي.

مدارك التنزيل وحقائق التأويل:أبو البركات النسفي.

لباب التأويل في معاني التنزيل:علاء الدين الخازن.

البحر المحيط:لأبي حيان.

تفسير الجلالين:جلال الدين المحلي وجلال الدين السيوطي.

إرشاد العقل السليم إلى مزايا الكتاب الكريم:أبو السعود العمادي.

روح المعاني في تفسير القرآن العظيم والسبع المثاني:شهاب الدين الألوسي.

تفسير كلام المنان:عبدالرحمن السعدي.

محاسن التأويل:جمال الدين القاسمي.

هغه تفاسير چې تفسير يې په رای مذموم سره کړی:

تنزيه الشريعة عن المطاعن:عبدالجبار الهمداني المعتزلي.

الكشاف:محمود الزمخشري المعتزلي.

مجمع البيان في تفسير القرآن:أبو علي الفضل بن الحسن الطبرسي.

تفسير كتاب الله العزيز:هود بن محكم الهواري.

تفسير القرآن العظيم:أبو محمد سهل التستري.

حقائق التفسير:أبو عبدالرحمن محمد بن الحسين السلمي.

الميزان في تفسير القرآن:محمد حسين الطباطبائي.

التفسير الكاشف:محمد جواد مغنية.

هميان الزاد إلى دار المعاد:محمد بن يوسف إطفيش.

البيان في تفسير القرآن:أبو القاسم الموسوي.

پينځم:د تفسير اجتماعي منهج:

د قران كريم د نزول په وخت خلك په جاهليت كې پراته وو،جاهليت په مختلفو شكلونو كې وجود لره،مثلا د مال لوټ كول،د بوتانو عبادت،د لورگانو ژوندۍ خښول،هيڅ ديني ارتباط نه لرل چې ددوۍ صفوف متحد كړي،نه سياسي اتحاد چې شوكت ته يې تقويت وركړي،او نه اقتصادي مصلحت چې دوۍ يو بل سره مربوط كړي،نو قران نازل شو،ددوۍ د اخلاقو د تهذيب،د عقيدې د اصلاح،د صفونو د توحيد،نو ناڅاپه يو ضعيف امت په قوي،او عظيم امت تبديل شو،چې توره او قلم يې لره،نو په قران كې د اجتماعي امراضو علاج شته،د سياسي،او خانداني امور او مشكلاتو حل هم قران پيش كړی،همدا وجه ده چې بعضې مفسرين د معاشرې د مشكلاتو علاج د قران په ايتونو كې لټوي،نو يو مفسر د ډاكټر په شان خپل ماحول ته گوري،د بيمارۍ تشخيص،او علاج ورته گوري،او ديته تفسير اجتماعي وايي.

**هغه تفاسير چې قران يې په تفسير اجتماعي اسلوب سره حل كړی:**

تفسير المنار:محمد رشيد رضا.

تفسير المراغي:أحمد مصطفى المراغي.

تفسير القرآن الكريم:محمد شلتوت.

صفوة الآثار والمفاهيم:عبدالرحمن بن محمد الدوسري.

في ظلال القرآن:سيد قطب.

**شپږم:د تفسیر بیاني منهج:**

قران کریم په عربۍ ژبه په هغه امت او قوم نازل شو،چې د شعر او خطابت لپاره به يې بازارونه ګرمول،او پدې به يې فخر کوو،قران کریم په هغه امت نازل شوی،چې د بلاغت او فصاحت پړی يې کلک نیولی و،هغوی په ښایسته منطق،ادا،او قوي تعبیر سره مشهور وو،خلک د هغوی اشعار او قصیدې تر اوسه پورې یاد ساتي،البته کله چې قران کریم نازل شو،نو ددوی عقلونه يې اسیران کړل،ځکه قران کریم په هر قسم بیان مشتمل دی،چې په فرید،عجیب،او ښکلي نظم مشتمل دی،د عربو د اسلوب برعکس،او هغه بیاني صورتونه پکښې شته چې په فصیح الفاظو او دقیقو معانو مشتمل دي،همدا وجه وه چې د مفسرینو بعضې د قران بیاني وجوهو ته متوجه شول،او په صحابه و کې پدې تفسیر سره ابن عباس مشهور و،ځکه هغه به د قران کریم د الفاظو د حل لپاره د عربو د اشعارو څخه استدلال کوو،بیا د تدوین په زمانه کې کتابونه ولیکل شو،لکه مجاز القرآن د ابو عبیده معمر بن المثنی،او معاني القرآن د فرا او کتاب نظم القرآن د جاحظ،د اعجاز القرآن باره کې کتابونه ولیکل شو،بعضې مفسرینو د قران ټول ایتونه تفسیر کړل،البته ددوی کتابونه د بیان(بلاغت او فصاحت) د وجوهو باره کې تفصیل کوي،لکه د زمخشري کتاب الکشاف،او مناسبت هم د بیان د وجوهو څخه دی،نو بقاعي

په خپل کتاب کې ددې د وضاحت اهتمام کړی،د هغه د کتاب نوم دی(نظم الدرر فی تناسب الآيات والسور) او پدې اړه د سیوطي کتاب(تناسق الدرر فی تناسب السور) او د الوسي کتاب(روح المعاني)البته دا کتابونه په پوره ډول د منهج بياني لپاره تاصيل ندی،چې ددې معالم تحديد کړي،بلکې هر يو کتاب يو جانب د بيان اختيار کړی.

البته پدې زمانه کې د لغت او بلاغت علماو ددې منهج لپاره معالم کيخودل،او مونږ کولی شو چې د منهج بياني خطوات په لاندې ډول خلاصه کړو:

۱ـ مفسر د يو موضوع متعلق د قرآن ايتونه راټول کړي،په هغې کې تدبر وکړي،او تفسير يې کړي.

۲ـ د يو موضوع متعلق ټولو ايتونو ته د نزول ترتيب ورکړي.

۳ـ د نص باره کې دراسه کول،چې د هغې تاريخ،سبب نزول،جمع،قرات،وغيره بيان کړي.

۴ـبيا د هغې معاشرې باره کې خبرې وکړي،چې دا نصوص پکښې نازل شوي،چې د هغوی عادات او تقاليد بيان کړي.

۵ـ د قران د ايت د مفرداتو دراسه کول،درانگه چې:

الف:ددې لفظ لغوي استعمالات څه دي.

ب:په قران کې دا لفظ په څو معانو استعمال شوی.

٦ـ د ايت د ترکيبي معانو دراسه کول،لکه نحوي يا بلاغي تحليل.

ددې منهج مطابق ليکل شوي کتابونه:

من هدي القرآن:القادة والرسل.

من هدي القرآن:في رمضان.

من هدي القرآن:في أموالهم.

من هدي القرآن:السلام والإسلام.

من هدي القرآن:القسم القرآني.

من هدي القرآن:القرآن والحياة.

من هدي القرآن:الطغيان في العلم والمال والحكم.

من هدي القرآن:الجندية والسلم.

من هدي القرآن:حكومة القرآن.

من هدي القرآن:الفن والبيان في القرآن.

من هدي القرآن:شخصية محمد.

من هدي القرآن:الحكم بما أنزل الله.

دا ټول تصنيفات د استاذ امين الخولي دي.

التفسير البياني للقرآن الكريم.

مقال في الإنسان:دراسة قرآنية.

الشخصية الإسلامية دراسة قرآنية.

القرآن وقضايا الإنسان.

دا ټول كتابونه د عايشه عبدالرحمن دي.

دا ټول كتابونه د بياني منهج لپاره يو جزوي تطبيق دی،البته دا منهج لا تراوسه د كامل تطبيق څخه بعيد دی.

## اووم منهج:د تذوق ادبي منهج

د قران څخه مزه اخستل،يو نفسي حركت دى،انسان ددې منع كول نشي كولى،كه غواړي او كه نه دا به يې خامخا په حواسو باندې اثر كوي،زمونږ مقصد يو دقيق معنى ده چې د قران اوريدلو په وخت يې مستمع محسوسوي،او ددغې جذباتو او احساستو اظهار كله په الفاظو سره كولى شي،او يې د بيان څخه عاجز وي،همدا وجه ده چې جناتو قران واوريد،نو هغوى سره د تعبير لپاره الفاظ نه و،صرف دومره يې وويل:چې عجيبه كتاب دى.

سيد قطب رحمه الله ددې خبرې وضاحت كړى،هغه وايي:په قران كې يو خاص سر پروت دى،چې ابتدايى طور سره پرې هر كس پوهيږي،ددې نه مخكې چې د اعجاز پلټنه وكړي،هغه به د قران په تعبيراتو كې خاص قوت محسوس كړي،دا به محسوسه كړي، چې ددغه معانيو شاته يو شى شته،او يو عنصر چې په احساس كې واقع كيږي..

مونږ كولى شو چې ووايو:تذوق ادبي د قران كريم د ذات او موضوع په مابين كې په مقارنه باندې قايم دى.

ذات حق لري چې په نص كې استغراق وكړي،او هغه محسوس كړي،پدې حيثيت سره چې استغراق به د صوفيانو پشان نه وي،چې د نص څخه تجاوز وكړي،او موضوع حق لري چې د هغې د لغوي معنى څخه تجاوز ونكړى شي،نو كله چې د ذات او موضوع په مابين كې موازنه او تناسب پيدا شو،همدا يو كس د تذوق ادبي ميدان كې داخلوي،او څومره چې موازنه او تناسب ډير و،هغومره به استقرار او ثبات وي،نو كه ذات د موضوع څخه تجاوز

وکړي،صوفي تفسير جوړيږي،چې په وهم باندې بنا دی،او که موضوع د ذات څخه تجاوز وکړي،دا د تذوق ادبي خلاف ده،او ساينسي تفسير گرځي،چې په هغې کې د نفس د جذباتو دايره تنگه وي.

الله دې سيد قطب ته اجر ورکړي،هغه په دې باب کې کامل او شامل تفسير ليکلی.

## د قرآن کريم اعراب:

تعريف:اعراب په لغت کې اظهار ته وايي،يعني په ضمير کې چې څه خبرې وي،د هغې د اظهار لپاره الفاظ استعمالول.

په اصطلاح کې:اعراب د لفظ اخيري حالت لفظا يا تقديرا بدليدل.

د قران کريم د اعراب څخه مراد:په مضبوط ډول د قران کريم الفاظ ازده کول،چې د هغې په نطق کې هيڅ غلطي ونشي،دې لپاره چې صحيح معنى يې ښکاره شي.

**ددې علم اهميت:**

ځکه پدې سره د کلام مقصود حاصليږي،کله چې يو کس د قران ايت په صحيح توګه ونه لولي،صحيح مطلب ته يې نشي رسيدلی،او اعراب د صحيح نطق لپاره وسيله ده،يو روايت کې راغلي،چې د علي رضي الله عنه په خلافت کې يو اعرابي راغلی،او خلکو ته يې وويل:پتاسو کې څوک شته چې ماته د قران تعليم راکړي،پدې کې يو کس سورت توبه ولوسته،نو د رسوله لفظ يې مجرور(د ل نه لاندې زير) ولوست،هغه وويل ددې مطلب خو دا شو،چې الله د خپل رسول نه بيزاره دی،نو زه هم ترې بيزاره يم،دا خبره عمر رضي الله عنه ته ورسيدله،هغه راطلب کړ،او صحيح قرات يې ورته وښود،بيا عمر حکم وکړ،چې د قران کريم تعليم صرف د هغه چا حق دی،چې په عربۍ پوهيږي.

د اعراب(يا نحو او صرف) علم د څه وخت نه پيدا شوی:

کله چې عجم د عربو سره يو ځاي شول،نو خلکو به په عربۍ ويلو کې لحن(غلطيانې)کولې،همدا لامل شو،چې د عربۍ لپاره قواعد وضع کړی

شو،پدې کې زیاد بن سمیه ابو الاسود راطلب کړ،او ویې ویل:چې عجم زمونږ سره یو ځای شول،چې عربۍ ژبه یې راته ګډه وډه کړه،نو که ته ددې لپاره قوانین کیږدې،نو هغه دا درخواست عملي کړ.

هغه امور چې په معرب(هغه کس چې د قران اعراب کوي)لپاره یې معرفت حاصلول ضروري دي:

۱ـ د کوم ایت یا کلام اعراب کول چې غواړي باید د هغې د معنی څخه ځان خبر کړي.

۲ـ هغه اعراب چې په شاذ قرات باندې حمل دی،د هغې نه ډډه کول،ځکه قران په عربو کې د قریشو په افصح لهجه نازل شوی.

۳ـ د عربۍ ژبې اهتمام لرونکی به وي.

۴ـ په ایت کې د اعراب مختلف وجوهات وي،چې د ټولو احاطه به کوي.

۵ـ په قران کې د زاید لفظ څخه اجتناب،یا د تکرار څخه،ځکه ددې نه دا لازمه راځي چې قران کې داسې الفاظ هم شته چې هیڅ معنی نه لري،یعني د اعراب په وخت به دا نه وایي،دا لفظ زاید دی.

٦ـ د رسم عثماني لحاظ ساتل،دې وجې هغه خلک په غلطه دي، چې وایي:سلسبیلا د امر صیغه ده نو اصل کې داسې دی:سل سبیلا د لارې تپوس وکړه،ځکه داسې وی نو مصحف کې به جدا جدا لیکل شوی وی.

۷ـ کله په اعراب او معنی کې تعارض راځي،نو اعراب جایز نه وي،او معنی صحیح وي،لکه د الله دا قول: **إِنَّهُ عَلَىٰ رَجْعِهِ لَقَادِرٌ (8) يَوْمَ تُبْلَى السَّرَائِرُ (9)**

دلته يوم ظرف دی،چې د رجع سره متعلق دی،او معنی داده چې الله پدغه ورځ د انسان په راوپس كولو قادر دی،ليكن اعراب ددې اجازت نه وركوي،ځكه د ظرف او مصدر مابين كې فاصله صحيح نده،لهذا دلته مونږ (يرجع) فعل مقدر راوباسو.

**د اعراب باره كې اهم كتابونه:**

علماو د اعراب القرآن په باب كې مختلف مناهج اختيار كړي،بعضو صرف د قرآن په اعراب او مشكل القرآن اكتفا كړې،لكه مكي رحمه الله،او بعضو د قرآن د غريب الفاظو اعراب كړی،لكه ابن الانباري په خپل كتاب البيان فی اعراب غريب القرآن كې،چا په يو كتاب كې د قرات او اعراب ټول وجوه راجمع كړي،لكه د فرا كتاب(معاني القرآن) او المحتسب د ابن جني،او الحجه د ابن فارس.

او دې باره كې مزيد تصنيفات په لاندې ډول:

إعراب القرآن في ثلاثة أجزاء لأبي جعفر أحمد بن محمد النحاس.

إعراب ثلاثين سورة من القرآن لابن خالويه في مجلد.

مشكل إعراب القرآن في مجلدين لمكي بن أبي طالب القيسي.

البيان في إعراب غريب القرآن لأبي البركات الأنباري في مجلدين.

التبيان في إعراب القرآن لأبي البقاء عبدالله بن الحسين العكبري.

إعراب القرآن الكريم وبيانه لمحي الدين درويش في عشرة مجلدات.

تفسير القرآن الكريم وإعرابه وبيانه في ستة عشر مجلد لمحمد علي طه.

## غريب القرآن:

### ۱ـ تعريف:

غريب په لغت کې:د جداولي او لرې والي په معنی راځي،رجل غريب يعني هغه کس چې د خپلې کورنۍ څخه جدا پاتې کيږي،او مبهم کلام ته هم غريب وايي.

نو غرابت په ځای کې لرې والي،او په کلام کې غموض او ابهام ته ويل کيږي.

**په اصطلاح کې:** غريب د قران د مشکل الفاظو د وضاحت علم ته وايي.

### ۲ـ ددې علم موضوع:

هغه الفاظ چې وضاحت ته اړتيا لري.

### ۳ـ ددې علم اهميت:

د هر مفسر لپاره ددې علم ازده کول ضروري دي،امام مالک فرمايي:څوک چې په عربۍ پوهه نلري،او قران تفسير کوي،هغه ته به زه سزا ورکړم.

ابن عباس رضي الله عنهما فرمايي:زه ددې ايت:

په معنی نه پوهيدلم،تر دې چې د يوې ښځې نه مې واوريدل چې ويل يې(افاتحک) مطلب زه تاسره فيصله کوم،نو فاتحين فيصله کوونکو ته وايي،او الله ښه فيصله کوونکی دی.

د لغت د مشکل الفاظو په اړه علم حاصلول لابدي امر دی،همدا وجه ده چې خطابي رحمه الله په خپل کتاب(غريب الحديث) کې باب تړلی(د حديث د طالب علم لپاره د عربۍ ژبې ټول علم ازده کول ضروري دي).

هغه وايي:ددې شيانو معرفت بايد حاصل کړي:د اسم اوزان،د فعل صيغي،او د اعراب وجوه،که چيرته ددې څخه جاهله وي،نو هيڅکله به صحيح علم حاصل نکړی شي،او فساد به يې د اصلاح څخه زيات شي.
همدا قاعده بايد د تفسير په باب کې هم جاري کړی شي،ځکه د قران د غريب(مشکل) الفاظو څخه جهالت د قران په تفسير کې د غلطۍ واقع کيدو سبب دی،د ابو العاليه رحمه الله څخه ددې ايت:
په اړه پوښتنه وشوه،هغه وويل:ساهون هغه کسان چې مونځ وکړي،او هيڅ پته ورته نه لګي،چې طاق و،او که جفت،نو حسن بصري ورته وويل:نه ابو العاليه داسې نده،بلکې مطلب هغه کسان چې د مونځ د وختونو څخه غافله دي،ځکه الله د(عن) لفظ استعمال کړی،او ددغه مقصد لپاره خو(فی صلاتهم) مناسب و.
ابن قتيبه ددې ايت:
باره کې وايي:دلته (يعش) د عشوت څخه ماخوذ دی،او معنی يې کتل دي.
علماو په ابن قتيبه رد کړی،او وايي:چې د عشا نه پس کله(الی) استعمال شي،د کتلو معنی ورکوي،او دلته ددې برعکس(عن) استعمال شو،نو معنی اعراض کول دي.

**ددې علم پدايشت:**

کله چې عجم په اسلام کې داخل شو،نو خلک د قران په بعضو الفاظو نه پوهيدل،پدې کې علماو حاجت محسوس کړ،چې د قران او حديث د غريب الفاظو وضاحت وکړي،لهذا دغه الفاظ يې په مستقل کتابونو کې راجمع کړل،او

د معانو وضاحت يې وکړ،او دا علم په تيرو زمانو کې په مختلفو نومونو يادېده مثلا:

**۱ـ معاني القرآن:**

کله چې ته د تفسير په کتابونو کې دا عبارت وويني(قال اهل المعاني) ددې څخه مراد هغه علما دي چې د غريب القرآن په اړه يې کتابونه ليکلي،لکه زجاج وغيره.

**۲ـ اعراب القرآن:**

حديث کې راځي:(اعربوا القرآن).امام سيوطي فرمايي: مطلب د قران د مشکل الفاظو د معانو معرفت.

**۳ـ مجاز القرآن:**

دلته هغه مجاز مراد ندی،چې د بلاغې په کتابونو کې تعريف ذکر کيږي،بلکې مجاز هغه منهج ته وايي چې قران په خپلو تعبيراتو کې غوره کړی.

**د ټولو نه مخکې چا پدې علم کې مستقل کتاب ليکلی:**

دې مساله کې اختلاف دی،بعضې وايي:

۱ـابن عباس:کله چې ترې نافع بن الازرق ۱۸۹ پوښتنې کړې وې، د قران د مشکل الفاظو باره کې دا سوالات امام سيوطي په(الاتقان) کې نقل کړي.

۲ـ ابان بن تغلب د(غريب القرآن) په نوم کتاب ليکلی و.

۳ـ معمر بن المثنی د(مجاز القرآن) په نوم کتاب ليکی.

ددې علم په اړه ليکل شوي کتابونو د ترتيب په لحاظ سره په دوه قسمه دي:

١ـ د سورتونو ترتيب:سورت ذکر کول،او د هغې د مشکل الفاظو وضاحت مثلا مجاز القرآن د معمر بن المثنى،غريب القرآن د ابن قتيبه معاني القرآن د زجاج.

٢ـ د حرف تهجي ترتيب:لکه د سجستاني کتاب(تنوير القلوب) د اصفهاني کتاب(مفردات غريب القرآن) د ابو حيان(تحفه الاريب).

ددې علم په باره کې بعضې نور تصانيف:

١ـ نزهة القلوب في تفسير غريب القرآن لمحمد بن عزيز العزيزي.

2_العمدة في غريب القرآن:لمكي بن أبي طالب.

3_الأريب بما في القرآن من الغريب لابن الجوزي.

4_ معجم ألفاظ القرآن.

5_ كلمات القرآن تفسير وبيان:حسنين مخلوف.

## الوجوه والنظائر:

وجوه په لغت کې د وجه جمع ده،(وجه الکلام) د خبرې کولو طریقه.
او نظایر د نظیره جمع ده،په شکل،افعالو،اقوالو،او اخلاقو کې یو شان والي ته وایي.

**اصطلاحي تعریف:**

نظایر الفاظو ته وایي،او وجوه معانو ته،یعني په قران کې یو لفظ په مخلتفو ځایونو کې وارد دی،او په هر ځای کې یې معنی مختلفه ده،نو شکل کې یو شان،او معنی کې اختلاف.

ددې علم موضوع:

د قرآن هغه الفاظ چې تکرار سره راغلي،او مختلفې معانې ورکوي.

**اهمیت:**

ددعې علم اهمیت د لفظ د معنې په پیژندلو سره ښکاره کیږي،ځکه د هیچا لپاره د قران تفسیر کول جایز ندي،تر څو چې د هر یو لفظ د معنی او د هغې د مختلفو استعمالاتو معرفت حاصل نکړي،ځکه په صحیح فهم باندې د عقیدې مسایل،او نور فرعي احکام مرتبیږي،همدا وجه ده چې ابو الدردا رضي الله عنه فرمایي:تر څو چې د قران د وجوهو څخه خبر نشې،نو په قران به صحیح پوهه نشې.

مثلا د شرک لفظ په مختلفو معانو سره وارد دی:

۱ـ پدې ایت کې د شرک معنی د الله سره بل څوک په عبادت کې شریکول دي:

۲ـ دې ايت کې د شرک نه مراد د غير الله تابعداري ده:

۳ـ دې ايت کې د شرک مطلب ريا ده:

ددې علم پيدايشت:

د رسول الله د زمانې څخه وجود لري،ابو سعيد الخدري فرمايي:رسول الله فرمايلي دي:په قران کې د قنوت مطلب عبادت دی.

ابن عباس فرمايي:په قران کې د ريب مطلب شک دی،مگر په يو ځای کې حوادث مراد دي.

ددې علم په اړه مهم کتابونه:

1_ الأشباه والنظائر في القرآن الكريم:مقاتل بن سليمان البلخي.

2_ما اتفق لفظه واختلف معناه في القرآن المجيد:أبو العباس المبرد.

3_ تحصيل نظائر القرآن:الحكيم الترمذي.

4_الوجوه والنظائر في القرآن الكريم:أبو عبدالله الدامغاني.

5_نزهة الأعين النواظر في علم الوجوه والنظائر:أبو الفرج بن الجوزي.

6_كشف السرائر في معني الوجوه والأشباه والنظائر:ابن العماد.

**هغه قواعد چې مفسر ورته محتاج دی:**

د تفسیر قواعد د قران د صحیح فهم لپاره معاون دي،او ددې قواعدو څخه بعضې په لاندې ډول دي:

۱ـ تر څو چې د عام تخصیص نه وي شوی،په خپل به باقي پاتې وي:

دا قاعده امام طبري رحمه الله د بعضې ایتونو په تفسیر کې استعمال کړې،مثلا هغه فرمایي:د الله دا قول: **الَّذِي أَطْعَمَهُم مِّن جُوعٍ وَآمَنَهُم مِّنْ خَوْفٍ (4)**

دلته د(خوف) لفظ هر قسم خوف ته شامل دی،مثلا ددشمن خوف،د بیمارۍ ویره،او دا صرف ددشمن د ویرې څخه په امن کولو پورې خاص ندی.

ځکه قاعده داده چې د عام تخصیص بغیر د مخصص څخه جایز ندی.

۲ـ اعتبار د لفظ عموم لره دی،خصوص لره نه.

امام ابن تیمیه فرمایي:کله چې مفسرین ووایي:دا ایت د فلانکي باره کې نازل شوی،نو ددوی مقصد دا ندی چې ایت د هغوی سره خاص دی،بلکې دا حکم د ټول امت لپاره دی.

مثلا د الله دا قول: **وَمِنَ النَّاسِ مَن يُعْجِبُكَ قَوْلُهُ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَيُشْهِدُ اللَّهَ عَلَىٰ مَا فِي قَلْبِهِ وَهُوَ أَلَدُّ الْخِصَامِ (204)**

د اخنس بن شریق باره کې نازل شوی،خو محمد بن کعب القرظي فرمایي:ایت د یو خاص کس په اړه نازل دی،خو ددې حکم هر چا ته شامل دی،چې پدغه صفت سره متصف وي.

۳ـ د قرات اختلاف د معنی د تعدد سبب دی:

په قرات کې اختلاف په دوه قسمه دی:

۱ـ په حرکاتو او حروفو تلفظ کولو کې اختلاف لکه اظهار،ادغام وغیره،البته ددې د تفسیر سره هیڅ تعلق نشته.

۲ـ چې په لفظ کې اختلاف وي،یا حرکت کې داسې چې په معنی موثر شي،نو ددې اثر په تفسیر باندې شته،او هر قرات جدا معنی لري،نو په ایت کې د یو نه زیات احتمال پیدا کیږي.

۴ـ د کلمې د شکل د مختلف والي د وجې معنی هم بدلیږي:

مثلا دا ایت: **سَنُقْرِئُكَ فَلَا تَنسَىٰ (6)**

د(فلا تنسی) باره کې د علماو اختلاف دی:

۱ـ(لا) نافیه ده او مطلب منع کول ندي،بلکې خبر ورکول مقصود دي.

۲ـ(لا) ناهیه ده او معنی ده(ته یې مه هیروه) منع شوې.

لیکن رسم عثماني اولنۍ معنی ته ترجیح ورکوي،ځکه که(لا) ناهیه وی،نو د فعل معتل څخه به حرف علت حذف شوی و،او داسې به لیکلی شوی وی(لا تنس).

۵ـ قرآني سیاق:

مفسر باید د سیاق لحاظ وکړي،ځکه دا د معنې تحدید کوي،خصوصا کله چې په جمله یا ایت کې دوه احتماله وي،نو سیاق مرجح دی،همدا قاعده امام طبري استعمال کړې،او پدې سره یې یو قول ته ترجیح،او نور اقوال رد کړي،مثلا دا ایت:

**وَلَقَدْ عَلِمُوا لَمَنِ اشْتَرَاهُ مَا لَهُ فِي الْآخِرَةِ مِنْ خَلَاقٍ ۚ وَلَبِئْسَ مَا شَرَوْا بِهِ أَنفُسَهُمْ لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ (102)**

امام طبري وايي:بعضې خلک گومان کوي،چې د(لقد علموا) څخه مراد شیطانان دي،او د(لو کانوا یعملون) نه مراد انسانان،لیکن دا قول غیر دی،ځکه سیاق د یهودو د مذمت په اړه دی،چې دوی د الله کتاب شاته غورځولی،حالانکه دوی د خپلې غلطۍ ادارک کوي،او پوهیږي چې په اخرت کې هیڅ حصه نلري.

٦ـ د قران الفاظ په غالبه او ظاهري معنی حمل کول ضروري دي:

امام طبري دا قاعده ددې ایت په تفسیر کې استعمال کړې:

چې د(خلاق) په معنی کې مختلف اقوال وارد دي،او راجح داده چې خلاق نصیب ته وايي،ځکه په عربو کې همدا لفظ ددې معنی لپاره مستعمل دی.

٧ـ شرعي معنی په لغوي باندې مقدم ده:

کله چې لفظ ددوه معانو احتمال ولري،یوه لغوي،او بله شرعي،نو په قران کې په شرعي معنی یې حمل کول ضروري دي،مثلا دا ایت: **وَلَا تُصَلِّ عَلَىٰ أَحَدٍ مِّنْهُم مَّاتَ أَبَدًا وَلَا تَقُمْ عَلَىٰ قَبْرِهِ ۖ إِنَّهُمْ كَفَرُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَمَاتُوا وَهُمْ فَاسِقُونَ (84)**

د صلاه لغوي معنی دعا او شرعي معنی مونځ،او دلته دویمه معنی مراد ده،یعني د جنازې مونځ.

## مشهور تفاسير او ددوی مناهج:

په تاريخ کې د قرآن نه علاوه بل داسې کتاب وجود نلري،چې خلکو اهميت ورکړی،او شروح يې پرې ليکلي،همدا وجه ده چې زما لپاره د ټولو تفاسيرو نومونه او د هر يو منهج ذکر کولو ممکن ندي،لهذا د بعضو تذکره په لاندې ډول کوم:

### ۱ـ د تفسير بالماثور په طرز ليکل شوي تفاسير:

۱ـ جامع البيان د امام طبري:

دده پوره نوم ابو جعفر محمد بن جرير الطبري دی،په(امل) علاقه طبرستان کې په ۲۲۴ کې پيدا شوی،او په ۳۱۰ کې وفات دی.

په قرات،تفسير،حديث او تاريخ کې امام و،په فقه کې يې خپل اقوال او اختيارات لرل،چې پدې باب کې خلک د هغه مقلدين دي،ابن خزيمه فرمايي:د ځمکې په مخ د ابن جرير څخه ځوک په تفسير ډير پوهه نشته.

د ابن جرير نور هم ډير کتابونه شته، لکه الغرايب په قرات کې، التنزيل، العدد، او تاريخ الرجال، د لطيف القول په نوم کتاب چې خپل فقهي اختيارات يې پکښ جمع کړي، الخفيف، التبصير، تهذيب الاثار،البسيط،الفضايل،او يو بل مهم کتاب چې(تاريخ الامم والملوک) نوميږي.

### د تفسير ابن جرير خصوصيات:

۱ـ په تفسير بالماثور يعني د رسول الله په احاديث،د صحابه و او تابعينو د اقوالو ذکر کول.

۲ـ احاديث په سند سره نقل کول.

۳ـ د اقوالو توجيه او ترجيح.
۴ـ د اعراب وجوه ذکر کول.
۵ـ په د احکامو په استخراج کې تدقيق.

دا تفسير څه زمانه پورې ورک و،بيا د حمود بن عبيد الرشيد بادشاه په زمانه کې يوه نسخه او مخطوطه يې وموندل شوه،او په ۳۰ جلده کې چاپ کړی شوه،بيا په ۱۹۱۱ کې دوباره چاپ شوه.

علامه محمود شاکر،او احمد شاکر ددې کتاب تحقيق،او تعليق کړی،ليکن ددوی تحقيق د سورت ابراهيم د ۲۷ ايت پورې دی،البته دا کار نورو علماو ته پاتې دی چې مکمل يې کړي.

ابن تيميه فرمايي:د ابن جرير تفسير په ټولو تفاسيرو کې بهتره دی،ځکه هغه د سلفو اقوال په سند سره ذکر کوي،پدې کې هيڅ تاويل او بدعت نشته،د مقاتل بن بکير او کلبي پشان متهمينو راويانو څخه د روايت کولو نه يې ډډه کړې.

**۲ـ تفسير(معالم التنزيل) د بغوي:**

حسين بن مسعود البغوي،د محيي السنه په لقب مشهور و،د ورع او تقوی په صفت سره مزين،او ددرس لپاره يې هميشه د اودس اهتمام کولو،په خراسان کې د(بغ) په علاقه کې پيدا شوی،په کال ۴۳۰ کې او په ۵۱۰ هجري کې په مرو کې وفات شوی،د قران حافظ،د قراتو عالم،د په تفسير،فقه او حديث کې الله مهارت ورکړی و،دده مشهور کتابونه:شرح السنه،د حديث باره کې،او مصابيح السنه او التهذيب په فقه شافعي کې.

دده تفسیر:

ابن تیمیه فرمایي:د بغوي تفسیر د تفسیر ثعلبي څخه اختصار دی،البته پدې کې يې د موضوع احادیثو،او بدعتي اقوالو څخه اجتناب کړی.

دا تفسیر د تفسیر بن کثیر سره یو ځای چاپ شوی و،او په مستقل طور سره په څلور جلدونو کې هم شته.

**د تفسیر بغوي خصوصیات:**

نه ډیر اوږد دی،او نه مختصر،د قران تفسیر په قران،حدیث،د سلفو په اقوالو سره کوي،سبب نزول ذکر کول،او د ایتونو څخه فقهي احکام رایستل،حدیث په سند سره ذکر کوي،البته د صحابه و او تابعینو نه بغیر نقل کوي،ځکه په مقدمه کې يې هر عالم ته د خپل سند اتصال بیان کړی،په ایت کې مختلف اقوال د ترجیح نه بغیر ذکر کول د هغه منهج دی،د اعراب مباحث په کثرت سره نه راوړل،او د عقیدې په مسایلو کې د علم الکلام څخه اجتناب کول.

**۳ـ المحرر الوجیز في تفسیر الکتاب العزیز:**

ابو محمد عبدالحق بن غالب بن عطیه الاندلسي.

په ۴۸۱ کې پیدا شوی،د اندلس د مشهورو علماو څخه و،چې په فقه،حدیث،تفسیر او ادب کې يې د خپلو ټولو اقرانو څخه سبقت کړی.

ابن جزي فرمایي:د ابن عطیه تفسیر په ټولو تفاسیرو کې بهترین او مناسب کتاب دی،په ښایسته تعبیر او دقیق استنباط متصف دی،او مصنف د حدیث محافظ دی.

ابن تيميه فرمايي:ابن عطيه د سنت تابعدار دی،دده تفسير د زمخشري د تفسير پشان په بدعاتو مشتمل ندی.

د ابن عطيه منهج:

ايت ذكر كول،او په اسان عبارت سره يې وضاحت،ددې په تفسير كې احاديث او اقوال نقل كول،او اكثر د ابن جرير طبري څخه نقل كوي،د ايت په تشريح كې د شعر څخه په كثرت سره استدلال كول،نحوي مسايل ذكر كوي،او په ايت كې مختلف قرات راوړل هم دده طريقه ده.

دا تفسير په ١٦ جلده مشتمل دی.

**۴ـ تفسير القرآن العظيم:**

عماد الدين اسماعيل بن عمرو بن كثير فی بصری علاقه(شام) په ۷۰۰ هجري كې پيدا شوی،دمشق ته د علم د حصول په خاطر راغلی و،او د ابن تيميه څخه يې استفاده كړې،د طلاق په مساله كې يې د هغه د قول مطابق فتوی وركوله،ددې په سبب هغه ته هلكو تكليفونه وركړل.

**د ابن كثير مشهور تصانيف:**

البدايه والنهايه،الاجتهاد فې طلب العلم،جامع المسانيد العشره،الكواكب الدراري وغيرها.

دده تفسير د تفسير بالماثور په باب كې مشهور دی،او د ابن جرير څخه وروسته دويمه مرتبه لري.

**په تفسير کولو کې د هغه منهج:**

ايت ذکر کوي،او په مختصر او اسان الفاظو سره يې شرح کوي،ددې ايت موافق ايتونه راجمع کول او په مابين کې مقارنه کول،بيا ددې ايت متعلق مرفوع احاديث راوړول،او ددې نه وروسته د صحابه و او تابعينو اقوال،کله د اقوالو مابين کې ترجيح ورکوي،په بعضې احاديثو د ضعف حکم،او په راويانو کلام هم کوي.

دا تفسير په څلور جلده کې مستقل طور سره چاپ شوی،او احمد شاکر او محمد نسيب الرفاعي مختصر کړی هم دی.

**۵ـ الدر المنثور:**

جلال الدين عبدالرحمن بن ابي بکر السيوطي په ۸۴۹ کې پيدا شوی،او ۹۱۱ کې وفات دی،په ځوانۍ کې يې تصنيف ته توجه کړې وه،بيا په تدريس بوخت شو،خو د زندګۍ په اخير مدت کې يې د هر څه څخه تنازل وکړ،او تاليف ته يې مخه کړه.

په هر فن کې مستقل کتاب لري،او دده بيشماره کتابونه دي،چې دلته يې ذکر کول د کتاب د طول سبب ګرځي.

**تفسيره:**

سيوطي په اول کې د ترجمان القرآن په نوم کتاب وليکه،بيا يې مختصر کړ،هغه وايي چې د خلکو د همت د کمزورۍ په وجه مې کتاب مختصر کړ،او الدر المنثور نوم مې ورته انتخاب کړ.

**په الدر المنثور کې د سیوطي منهج:**

د سیوطي عموما طرز دادی چې د صحیح او ضعیف مابین کې فرق نکوي،لهذا پدې تفسیر کې روایات بغیر د تعقیب او تحقیق څخه نقل کوي.

دا تفسیر په شپږ جلده مشتمل دی.

**د تفسیر بالرای په طرز لیکل شوي تفاسیر:**

1_الكشاف عن حقائق التنزيل وعيون الأقاويل في وجوه التأويل:للزمخشري أبو القاسم محمود بن عمر الزمخشري المعتزلي،جار الله يې لقب دی،په خوارزم کلي کې په ۴۶۷ کال پیدا شوی،د علم د حصول څخه وروسته مکې ته مسافر شو،او هلته يې دا تفسیر ولیکه،په مذهب کې حنفي،او عقیده کې معتزلي دی،دده مشهور کتابونه:أساس البلاغة والفائق في غريب الحديث والمفصل في النحو والمقامات وربيع الأبرار ونصوص الأخبار والأحاجي النحوية.

**په تفسیر کې د هغه منهج:**

د قران د اعجاز وجوه ذکر کوي،د هغې د نظم جمال او بلاغت واضحه کوي،دا تفسیر د تطویل او حشو او اسرایلي روایاتو څخه خالي دی،د احادیث څخه استدلال کم کوي،کله د سورت په فضایلو کې موضوع احادیث راوړي،د معتزله و په عقایدو سره يې تفسیر گنده کړی،پدې باب کې د تدلیس څخه کار اخلي چې هر سړي يې د اعتزال ادارک نشي کولی،د اهل سنت والجماعت خلاف بده ژبه استعمالوي،او په سخته لهجه پرې ردونه کوي،همدا وجه ده

چې علماو دده د تفسير څخه د اجتناب نصيحت کړی،البته که د جا قدم په علم کې مضبوط و،هغه کولی شي استفاده ترې وکړي.

**۲ـ مفاتيح الغيب:**

أبو عبدالله محمد بن عمر الرازي المعروف بفخر الدين.

په ۵۴۴ کال کې پيدا شوی،او هرات کې په ٦٠٦ کې وفات شوی،په تفسير،علم الکلام،منطق،فلسفه کې امام و،او په اخيري عمر کې يې د ندامت اظهار کړی،چې ولې مې په علم الکلام ځان مشغول کړی و.

**دده تصانيف:**

مفاتيح الغيب,المحصول في علم الأصول,درة التنزيل وغرة التأويل,الأربعون في أصول الدين,عصمة الأنبياء,نهاية الإيجاز في دراية الإعجاز,مسائل الطب.

په تفسير کې يې دوه کتابونه ليکلي،يو التفسير الکبير چې مفاتيح الغيب نوميږي،او بل تفسير صغير چې اسرار التنزيل وانوار التاويل نوميده.

د علم الکلام په منهج کې دا د ټولو نه ستر تفسير دی،ځکه هغه د عقلي علومو څخه متاثره و،نو د حکماو او فلاسفه و منهج يې اختيار کړی،د رياضي،ساينس،فلکياتو،او طب په علومو سره يې خپل تفسير ډک کړی،تر دې چې علماو ويلي:پدې تفسير کې د تفسير نه علاوه هر شی شته.

البته کله چې سورت انبيا ته ورسيد،نو الله تعالى ترې روح قبض کړ،او د هغه د وفات نه وروسته د هغه شاګرد الخويي دا تفسير مکمل کړ.

دا تفسير په ١٦ جلده مشتمل دی.

**3_البحر المحيط:**

أبو عبدالله محمد بن يوسف بن حيان الأندلسي المعروف بأبي حيان،په غرناطه کې پيدا شوی،کال ٦٥۴ او قاهره کې په کال ٧۴۵ وفات شوی.

داودي وايي:هغه په خپل دور کې نحوي،لغوي،مفسر،محدث،مقري،مورخ،او اديب و.

**دده تصانيف:**

النهر الماد من البحر,تحفة الأريب بما في القرآن من الغريب وغيرهما.

**تفسيره:**

البحر المحيط په اته جلده مشتمل دی،اعراب او نحوي مسايلو ته خصوصي توجه کوي،د نحويانو مابين کې اختلافات ذکر کول،د الفاظو لغوي معاني،او د قراتونو نحوي او بلاغي توجيهات کوي،تر دې چې دا کتاب د نحو کتابونو ته نژدې دی.

البته د تفسير نور جوانب يې مهمل ندي پريخي، بلکې د نزول اسباب، قرات، ناسخ منسوخ او د ايتونو څخه فقهي احکام هم مستنبطوي.

**4_إرشاد العقل السليم إلى مزايا القرآن الكريم:لأبي السعود العمادي:**

أبو السعود محمد بن محمد بن مصطفى،په کال ٨٩٣ کې د قسطنطنيه يو کلي کې پيدا شوی،چونگه په قضاوت مصروف و،ددې وجې يې تصانيف ندي ليکلي.

تفسيره:

پدې تفسير کې يې د زمخشري په الکشاف،او تفسير بيضاوي باندې اعتماد کړی،البته د زمخشري د اعتزالياتو تاييد نکوي،بلکې د تحذير لپاره يې ذکر کړي،البته د سوروتو په فضايلو کې موضوع احاديث واردوي،د بلاغت وجوه په کثرت سره ذکر کول،په قراني تراکيبو کې د موجود دقايقو اظهار،د ايتونو په مابين کې مناسبت بيانول،او د فقهي مسايلو او اسرايلي رواياتو څخه کثرت نه کول دده منهج دی.

**4_ روح المعاني في تفسير القرآن العظيم والسبع المثاني:**

أبو الثناء السيد محمود شهاب الدين الألوسي په ۱۲۱۷ کال کې په بغداد کرخ کې پيدا شوی،په ډيرو علومو کې يې تفوق حاصل کړ،تر دې چې د عراق علامه وگرځيد،ډير کتابونه يې تصنيف کړي.

تفسيره:

په عقيده کې يې د اهل سنت والجماعت مذهب ته ترجيح ورکړې،او ډير کله په معتزله و باندې رد کوي،د شيعه گانو اقوال ذکر کوي،او په علمي ډول سره يې ابطال کوي،دساينس او فلکياتو د علومو ذکر کول،د احکامو متعلق د فقهاو مذاهب بيانول،د نحوي مسايلو په باب کې توسع،او په اسرايلي رواياتو جرح د هغه منهج دی.

البته دا کتاب په تفسير اشاري سره هم مشهور دی،د ايتونو مابين کې مناسبت،اسباب نزول ذکر کول،او د اشعارو څخه استدلال هم ددې امتيازات دي.

په ۱۵ جلده مشتمل دی.

## ۳ـ په اوسنۍ زمانه کې د تفسير کتابونه:

### ۱ـ محاسن التأويل:جمال الدين القاسمي.

محمد جمال الدين بن محمد سعيد بن قاسم،په ۱۲۷۳ کال دمشق کې پيدا شوی،په ځوانۍ کې يې تدريس پيل کړ،او سلفي المذهب و،په ژبه او قلم کې د عفت په صفت متصف و،په ۱۳۳۲ کې وفات شوی.

مشهور کتابونه يې:

قواعد التحديث، اصلاح المساجد من البدع والعوايد، تاريخ الجمهيه والمتعزله، موعظة المؤمنين من إحياء علوم الدين.

تفسير:

دا په تفسير قاسمي سره مشهور دی،په ۱۷ جلده مشتمل،اولني جلد کې يې مقدمه ذکر کړې،چې د تفسير په مهمو قواعدو مشتمل ده،په صحيح احاديثو استدلال کوي،د لغت په باب کې اصل مصادرو ته رجوع کوي،او بعضو ويلي چې هغه صرف ناقل دی،او خپل هيڅ اجتهاد نلري،قاسمي صرف د سلفو په قول اکتفا پدې وجه کړې چې دا کومه معاشره کې اوسيده هلته بدعات عام وو،نو د سلفو په اقوالو کې ددې معاشره بهتر علاج موجود دی.

### ۲ـ تفسير المنار:

محمد رشيد بن علي بن رضا په قلمون کلي کې پيدا شوی،چې دا په شام کې واقع دی،او دده پيدايش په کال ۱۲۷۲ کې شوی،مصر ته يې سفر کړی،او هغه د محمد عبده د شاگردانو څخه دی،دده تفسير د چاپ نه مخکې په مجله المنار کې نشر کيده،په ۱۳۵۴ کال قاهره کې وفات شو.

دده تصانيف:

تاريخ الأستاذ الإمام محمد عبده في ثلاثة مجلدات,الوحي المحمدي,نداء للجنس اللطيف,الوحدة الإسلامية وغيرها.

دده تفسير په اصل کې د استاذ محمد عبده درسونه دي، چې هغه به کول،او ده به ليکل،محمد عبده په تفسير کې د سورت نسا ۱۲۵ ايت ته رسيدلی و،بيا وفات شو،د هغې نه پس محمد رشيد رضا دا تفسير د سورت يوسف ۱۰۱ ايت ته ورسوو،تر دې چې وفات شو،او دا تفسير په ۱۲ جلده کې چاپ شو،بيا محمد بهجت سورت يوسف مکمل کړ،او دا سورت يې په مستقل کتاب کې هم چاپ کړی.

دا تفسير دوه قسمه ته تقسيمولی شو:

اولنی قسم:هغه چې د محمد عبده د وفات نه مخکې يې ليکلی،او دويم قسم هغه چې د هغه د وفات څخه وروسته يې ليکی و،اولني قسم کې تفسير بالماثور کم دی،او رای اکثره ده،د هغه ترکيز په اصلاح د مجتمع دی،او په دويم قسم کې محمد رشيد رضا تفسير بالماثور ته اهتمام ورکړی،هغه وايي: چې د استاذ د وفات نه پس ما د هغه د منهج مخالفت وکړ.

**۳ـ تيسر الکريم الرحمن فی تفسير کلام المنان:لابن السعدي:**

عبدالرحمن بن ناصر په عنيزه(قصيم) کې په ۱۳۰۷ کې پيدا شوی،او هغه ماشوم و چې د پلار او مور د صحبت څخه محرومه شو،نو دويمې مور يې کفالت وکړ،او د خپلو بچو نه ورته زيات گران و،د قران د حفظ لپاره يې مدرسه

کې داخل کړ،او په ۱۴ کلنۍ کې يې قران حفظ کړ،بياب د علم په حصول مشغول شو.

**دده تصانيف:**

تيسير اللطيف المنان في خلاصة تفسير القرآن چې ددغې تفسير خلاصه ده،القواعد الحسان لتفسير القرآن,المواهب الربانية من الآيات القرآنية,التنبيهات اللطيفة فيما احتوت عليه الواسطية من المباحث المنيفة,الفواكه الشهية في الخطب المنبرية,الفتاوى السعدية,وغيره.

دده تفسير په اوه جلده مشتمل دی،مختصر او واضح دی،يو ځو ايتونه ذکر کوي،او بيا يو يو ايت اجمالي طور سره تفسير کړي،د ايت په اخير کې د الله د اسماو او صفاتو د راتلو حکمت بيانوي،د بعضې شرعي احکامو حکمت،د اسراييلي رواياتو څخه اعراض،او د قران د ايتونو هدايات او فوايد ذکر کول دده خصوصيت دی.

**۴ـ فی ظلال القرآن:**

سيد بن الحاج قطب بن ابراهيم،په ۱۹۰٦ کې پيدا شوی،د دار العلوم کليه څخه د فراغت نه پس په تدريس مصروفه شو،بيا يې د معارف په وزارت کې وظيفه واخسته،امريکا ته د تعليم د منهج د معلومولو په غرض تلی و،چې همدغه مناهج په مصر کې تطبيق کړي،کله چې د امريکا څخه واپس شو،دعوت يې لانور هم چټک کړ،او د اخوان المسلمين په جماعت کې داخل شو،کله چې د اخوانيانو او مصر د حکومت په مابين کې تصادم راغلی،نو پده باندې د ۱۵ کاله جيل حکم صادر کړی شو،او په جيل کې يې دا تفسير

ولیکه،کله چې عبدالسلام عارف د مصر صدر دا تفسیر ولوست نو دده د راخلاصولو حکم یې صادر کړ،او په کال ۱۹۶۴ کې د جیل څخه خلاص شو،بیا په کال ۱۹٦٦ کې دوباره بندي کړی شو،او د اعدام حکم پرې وشو،هغه ته خلکو درخواست وکړ،چې د جمال الدین څخه معافي وغواړي،لیکن هغه دا طلب رد کړ،او ویې ویل:کومه گوته چې په مونځ کې د الله د وحدانیت گواهي ورکوي،ددې انکار کوي چې د طاغوت په موافقت کې یو حرف ولیکي.

**دده تصانیف:**

معالم في الطریق،دا کتاب دده د اعدام سبب گرځیدلی و،التصویر الفني في القرآن،مشاهد یوم القیامه،المستقبل لهذا الدین.

**دده تفسیر:**

قران چې د زندگۍ څنگه وصف بیان کړی،دا کتاب د هغې څخه تعبیر کوي،او په تذوق ادبي منهج سره لیکلی شوی اولنی کتاب دی،چې د معاشرې د مشکلاتو علاج د قران په ایتونو کې لټوي.

**دده منهج:**

د هر سورت په ابتدا کې د هغې موضوع،محور،او اهم صفات بیانوي،او د سورت خلاصه ذکر کوي،بیا د مختلفو ایتونو مابین کې مناسبت ذکر کوي،د لغوي،فقهي او نحوي اختلافاتو څخه یې اعراض کړی.

په شپږ جلده مشتمل دی.

**۵ـ أضواء البیان في إیضاح القرآن بالقرآن:**

محمد الأمین بن محمد المختار الجنکي الشنقیطي.

په ۱۳۲۵ کال،شنقیط علاقه کې پیدا شوی،چې اوس په موریتانیا دولت سره مشهور دی.

شرعي علوم يې حاصل کړل،د ادب کتابونه يې په ښه ډول ازده کړي و،او په فقه مالکي ماهره و،کله چې يې حج ادا کړ،او د سعودي د علماو څخه يې رابطه وشوه،نو هغوی ترې متاثره شو،او دده په سعودي کې د پاتې کیدو طلب يې وکړ،نو ملک بن عبدالعزيز ورته په مسجد نبوي کې د تدریس اجازت ورکه،بیا يې څه وخت په ریاض کې تدریس وکړ،او کله چې جامعه اسلامیه کولاو شوه،نو هلته مدرس وټاکل شو،په ۱۳۹۳ کال مکه کې وفات شو.

**د هغه تصانيف:**

منع جواز المجاز في المنزل للتعبد والاعجاز،دفع ایهام الاضطراب عن آی الکتاب،آداب البحث والمناظره.

دا تفسیر يې د سورت مجادلې پورې رسولی و،د هغه د وفات نه پس،شاګرد يې(عطيه محمد سالم) مکمل کړ.

**منهج:**

د قرآن تفسیر په قرآن سره کوي،د شاذ قرات څخه اجتناب کوي،او د ایتونو څخه په احکام رایستلو کې دقیق دی،لکه څنګه چې په لغوي مباحثو هم مشتمل دی.

**دويم:د اصول التفسير او ددې د مناهجو باره کې کتابونه:**

1_ التيسير في قواعد علم التفسير:محمد بن سليمان الكافيجي.

2_ الفوز الكبير في أصول التفسير:أحمد بن عبدالرحيم الدهلوي.

3_ مذاهب التفسير الإسلامي:للمستشرق جولد تسهر ترجمة الدكتور عبدالحليم النجار.

4_ اتجاه التفسير في العصر الحديث:للشيخ مصطفى محمد الحديدي الطير.

5_ نشأة التفسير ومناهجه في ضوء المذاهب الإسلامية:الدكتور محمود بسيوني.

6_ الاتجاهات السنية والمعتزلية في تأويل القرآن:د التهامي نفرة.

7_ المفسرون بين التأويل والإثبات في آيات الصفات:للشيخ محمد المغراوي في مجلدين.

8_ مناهج في التفسير:د مصطفى الصاوي.

9_ اتجاهات التجديد في تفسير القرآن الكريم في مصر:محمد ابراهيم الشريف.

10_ أصول التفسير وقواعده:الشيخ خالد عبدالرحمن العك.

11_ اتجاهات التفسير في القرن الرابع عشر الهجري:فهد بن عبدالرحمن الرومي.في ثلاثة مجلدات.

**د اصول التفسير په اړه د بعضې مصنفاتو تعارف:**

**١ـ الاكسير فى علم التفسير:**

سليمان بن عبدالقوى الصرصرى الطوفي:په بغداد کې ٦٥٧ هجري باندې پيدا شوی،فقيه،شاعر،او اديب و،ډير مصنفات يې نور هم شته چې د هغې څخه جدل القرآن او بغيه الواصل فى معرفه الفواصل مشهور دي.

دا کتاب(الاکسیر) په یو جلد مشتمل دی،چې دکتور عبدالقادر حسین یې تحقیق کړی،په مقدمه او درې اقسامو مشتمل دی،په مقدمه کې یې د تفسیر او تاویل معنی بیان کړې،او په اول قسم کې یې کلام په دوه قسمه کړی،اول چې لفظ او معنی یې واضحه وي،او تفسیر ته ضرورت نلري،دویم:چې تفسیر ته ضرورت لري،ځکه معنی او لفظ مشکل دي،په دویم قسم کې هغه علوم یې ذکر کړي چې د مفسر لپاره یې حاصلول ضروري دي،په دریم قسم کې د علم المعاني او علم البیان تفصیل دی،چې په ۳۰۰ صفحاتو کې یې ذکر کړي،او هغه دا کتاب د ابن الاثیر د کتاب(الجامع الکبیر فی صناعه المنظوم والمنثور) څخه مختصر کړی.

**2_ مقدمة في أصول التفسير:**

أحمد بن عبدالحليم الحراني الدمشقي,أبو العباس تقي الدين ابن تيميه,٦٦١ کال کې په حران کې پیدا شوی،هغه په علم او جهاد سره په ټوله دنیا کې مشهور دی،د الله ددین په وجه یې تکالیف او جیلونه برداشت کړي،او ۷۲۸ کې په جیل کې وفات شوی.

د هغه کتابونه الشیخ عبدالرحمن بن القاسم او د هغه ځوې په ۳۵ مجلده کې راجمع کړي،او صرف د نومونو فهارس یې په دوه جلده کې دي،د هغه مشهور کتابونه په لاندې ډول دي:

درء تعارض العقل والنقل,11 جلد,منهاج السنة النبوية,9 جلد,الصارم المسلول على شاتم الرسول,اقتضاء الصراط المستقيم,الجواب الصحيح لمن

بدل دين المسيح,الرسالة التدمرية,العقيدة الواسطية,الإيمان,بغية المرتاد,وغيرها.

پدې کتاب(مقدمه فی اصول التفسير) کې يې پينځه فصول ذکر کړي،اولنی فصل دې باره کې رسول الله به صحابه و ته د قران معاني بيانولې،لکه څنگه چې ورته د الفاظو تعليم ورکوو،دويم فصل:د مفسريونو په مابين کې اختلاف،دريم فصل:د مستند په اعتبار سره په تفسير کې اختلاف،په څلورم فصل:کې د تفسير الرای باره کې خبره،په پينځم فصل کې د تفسير د مناهجو باره کې.

**۳ـ القواعد الحسان لتفسير القرآن:ابن السعدي:**

مولف ددې کتاب تعارف دارنگه کړی:دا اصول او قواعد د قران د تفسير لپاره دي،چې فايده مند دي،طالب علم سره د قران په فهم کې مرسته کوي. پدې کتاب کې يې ۷۰ قواعد،سره د مثالونو ذکر کړي،او کتاب په ۲۰۴ صفحاتو کې چاپ شوی.

**۴ـ بدع التفاسير:عبدالله بن الصديق الغماري:**

په ۱۳۱۷ کې پيدا شوی،او د جامعه الازهر څخه يې د عالميه سند حاصل کړی،فقيه،محدث،او د شاذليه و په منهج صوفي و،د ابن تيميه خلاف يې قلم استعمال کړی،ډير کتابونه يې ليکلي چې بعضې دادي:

إقامة البرهان على نزول عيسى في آخر آخر الزمان,عقيدة أهل الإسلام في نزول عيسى عليه السلام,جواهر البيان في تناسب سور القرآن,الكنز الثمين في حديث النبي الأمين,وغيرها.

دا کتاب په ۱۸۸ صفحاتو کې واقع دی،مولف وايي:يو عجيب کتاب دی،پدې باب کې مثيل نلري،د بعضې غلطو تفاسيرو تذکره پکښې شوې.